

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

## د کتاب ځانګړتیاوې

---

مضمون: مدني زده کړې

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د مدني زده کړو د دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د ایډیټ د څانګې علمي غړي

ټولګی: یوولسم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای: کابل

چاپخونه:

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af

---

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراگانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږگوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وگړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

## مدني زده کړې

# لومړی څپرکی

## ټولنیز کېدل

په دې څپرکي کې به لاندې موضوعات زده کړو:

- ټولنیز کېدل څه ته وايي؟
- د ټولنیزکېدو لاملونه (۱)
- د ټولنیزکېدو لاملونه (۲)
- د ژوند پړاوونه

# د ښځې کي موخې

ګرانو زده کوونکو د دې ښځې کي تر لوستلو وروسته به:

- د ټولنيزکېدو په معنا او ارزښت وپوهيږئ،
- د ټولنيزو اړيکو په ټينګولو کې به ډېره تجربه او مهارت تر لاسه کړئ،
- د ټولنيزو ارزښتونو منلو ته به ليوالتيا وښيئ،
- د ټولنيزکېدو لاملونه او پرخلکو باندې د هغو د اغېزې د څرنګوالي په اړه به وپوهيږئ،
- د انسا ن د ژوند له پړاوونو او د هغو له ضروري ارزښتونو سره به علاقمندي تر لاسه کړئ.

# ټولنيزکېدل څه ته وايي؟

## خبرې پرې وکړئ

پوهېږئ چې خلك په بېلابېلو ټولنوکې ډول ډول آداب، رواجونه او سلوك لري.

د مثال په ډول: د سلام اچولو او روغبړ کولو لپاره، د نړۍ د وګړو ترمنځ ډول ډول طريقې موجودې دي. دغه ټکي ته په پام سره:



١- آيا تاسو هغه خلك پېژنئ چې د سلام او روغبړ کولو پر مهال له بېلابېلو کلماتو او سلوك څخه استفاده کوي؟

٢- ستاسو په اند هغوی ولې ستاسو په شان رفتار نه کوي؟

٣- آيا پوهېږئ چې په مختلفو ټولنو کې څه توپير موجود دی؟

که چېرې له خپل کلي او يا ښار څخه مو نورو ښارونو او يا هېوادونو ته مسافرت کړی وي، هرو مرو به مو ليدلي وي چې خلك په بېلابېلو ښارونو او هېوادونو کې:

- په ډول ډول ژبو خبرې کوي،
- بېلابېلې او ډول ډول جامې اغوندي،
- ډول ډول خواړه خوري،
- په يو ډول مو قعيت کې ډول ډول سلوك او رفتارونه له ځانه ښکاره کوي.

د دغو توپيرونو په ليدلو سره، د انسان په فکر کې دا پوښتنه پيداکېږي چې خلك ولې په بېلابېلو ټولنو کې په بېلابېلو ډولونو سلوك او رفتارونه کوي؟

د پورته پوښتنې په ځواب کې بايد ووېل شي چې هره ټولنه ځانته ځانګړی فرهنګ لري او په فرهنګ کې د وګړو د رفتار لپاره بېلابېلې تګلارې په ګوته شوي دي چې د ټولنې غړي د هغو

پربنسټ عمل کوي.

دغه ټولنیز سلوک او رفتار په ټولنو کې څه ناڅه توپیر لري. له دې امله خلک په بېلابېلو هېوادونو کې د مختلفو آدابو، رواجونو او ډول ډول سلوکونو په لرلو سره لیدل کېږي. ټول ټولنیز ځایونه او سیمې، لکه: کورنی، ښوونځی، کوڅه، اداره او همداسې نور د ځانګړو قواعدو درلودونکي وي. د بیلګې په توګه: د ټولګي د ننه قواعد په پام کې ونیسو:

۱- آرامه او غلي واوسو.

۲- پر خپلو ځایونوکینو.

۳- د ښوونکي خبروته غوږ کېږدو.

٤- خپلو ټولګیو الوته مزاحمت ونه کړو.

۵- د ښوونکي د خبرو ضروري ټکي له ځان سره ولیکو. دغه ټول د زده کوونکو د سلوک او رفتار یوځو ضروري بیلګې دي چې په ټولګي کې یې باید په پام کې ونیسو او له هغو سره سم عمل وکړو.

له ښوونکي څخه هم هیله کېږي چې له ځانګړو کړنو او اصولو څخه پیروي وکړي چې وکولای شي خپله دنده او رول د ښوونکي په توګه ترسره کړي. د مثا ل په توګه: له ښوونکي څخه هیله کېږي چې:

۱-منظمې او پاکې جامې واغوندي.

۲-پر زده کوونکو مهربان واوسي او له هغوی سره په مهربانی چلند وکړي.

۳- د لوست د ورکړې لپاره په سمه توګه تیاری ونیسي.

٤- لوست په سمه توګه تشریح کړي.

۵- د ښوونې له ښو او اغېزمنو لارو څخه دې ګټه واخلي.

٦- له زده کوونکو سره په اړیکو کې دې د هغوی ترمنځ توپیر نه کوي.

۷- د ټولګي نظم دې ټینګ کړي.

## ټولنیزکېدل د ژوند په لومړي پړاوکې

په کو چنیوالي کې له ډېرو ټولنیزو ارزښتونو سره پېژند ګلوي نه لرو او په ورو، ورو چې لوېږو له هغوسره ډېره پیژند ګلوي ترلاسه کوو او په بېلابېلو ځایونو کې په داسې ډول چلند کوو چې نورېې له موږ څخه توقع لري. دغه چلند او اصولو ته ټولنپوهان **ټولنیز قواعد** وایي. موږ له کوچنیوالي څخه په

ناځاپي توګه د ټولنيزو قواعدو په زده کولو پيل کوو او له دې لارې څخه ټولنيز کېږو. **ټولنيزکېدل** په يوځل او په لنډ وخت کې نه تر سره کېږي، بلکې د پيدايښت له وخته پيل کېږي که څه هم د ژوند په لومړنيو کلونو کې د ژوند کولو، د ځان او چاپېريال د پاک ساتلو آداب، ټولنيز قواعد او ارزښتونه او همداسې نور ډېر موضوعات زده کوو. خو ورو ورو چې لويېږو، زموږ د ژوند شرايط توپير کوي او موږ بايد زده کړو چې په نوي سني پړاو او کاري شرايطو کې څرنګه رفتار وکړو. د مثال په ډول: کله چې د ځوانۍ لومړنيو پړاوونوته رسېږو، له موږ څخه هيله کېږي چې يو لړ چارې تر سره کړو چې ترهغه مو پخوا نه ترسره کولې او يا يو لړ چارې مو چې پخوا تر سره کولې، نور هغه له دې وروسته تر سره نه کړو. يا هغه وخت چې تازه د زده کړې له بهير نه وزګارېږو (فارغ التحصيل کېږو) او په کومه اداره يا کارخانې کې چې په کار بوخت کېږو، بايد زده کړو چې په هغه نوي چاپېريال کې څرنګه رفتار او عمل وکړو.

## د ژوند په اړه معلومات

هغه مهمې چارې چې د ټولنيز کېدو په بهير کې زده کوو، کولای شو لاندې ټکو ته ګوته ونيسو:

## ټولنيز قواعد او ارزښتونه

د ټولنې غړي د ټولنيزکېدو له لارې د خپلې ټولنې له قواعدو او ارزښتونو سره پېژندګلوي تر لاسه کوي. پوهېږو چې ټولنيز قواعد او ارزښتونه په بېلابېلو ټولنو کې څه ناڅه توپيرلري او د ټولنې غړي بايد زده کړي چې په خپله ټولنه کې کومې چارې په کوم ډول ترسره کړي او کومې چارې بايد ترسره نه کړي.

## کاري وړتياوې

ټولنيز ژوند د ځانګړو وړتياوو غوښتونکی دی.خو دغه وړتياوې چې يوه برخه يې ساده او نورې برخې يې پيچلې دي، بايد زده شي چې له زده کړې پرته د هغو په تر سره کولو به ونه توا نېږو. موږ هغه ټولې د ژوند په بهير کې زده کوو.

## له نورو سره د اړيکو د ټينګولو څرنګوالی

له نورو سره د اړيکو ټينګول د ټولنيز ژوند يوه اړتيا ده. له نورو سره د اړيکو په ټينګولو کې بريالیتوب زموږ د ټولنيز ژوند د بريالیتوب لامل ګرځي. د بيلګې په ډول: په ټولنيز ژوند کې لازمه

ده چې له خپلو دوستانو سره په مهربانۍ رفتار ولرو او له پردیو سره په عادي ډول اړیکې ولرو. کله چې ځوک زموږ لپاره کوم کار ترسره کوي باید له هغه څخه مننه او قدر داني وکړو او که چېرې زموږ حق ضایع کوي باید د هغه په وړاندې د مخالفت او ناخوښۍ اظهار وکړو.



## د لوست تکرار

- ........................................
- ........................................
- ........................................
- ........................................



## پوښتنې

۱- په مختلفو ټولنو کې وګړي له یوبل څخه په کومو مسایلو کې توپیر لري؟

۲-ولې خلك په بېلابېلو هېوادونو کې ډول ډول دودونه لري؟

۳- په ټولګي کې د ښوونکي د رفتار بېلګې کومې دي؟ بیان یې کړئ.

٤- موږ د ټولنې قواعد، رفتارونه او ارزښتونه څرنګه زده کوو؟

۵- موږ د ټولنیزکېدو له لارې کوم څیزونه زده کوو؟

٦- له نورو سره اړیکې درلودل څه اهمیت لري؟

۷- د انسان عاطفي رفتار څه ډول وي؟ یو مثال راوړئ.



## کورنۍ دنده

یو دوه کلن ماشوم د یوه نوي پیداشوي ماشوم سره پرتله کړئ او په ګوته کړئ چې:

۱- د دوه کلن ماشوم کوم څیزونه زده دي چې د یو نوي پیداشوي ماشوم زده نه دي.(د مثال په توګه: کولای شئ چې لاندې چارو ته پام وکړئ: خبرې کول، په لاره تلل، لوبې کول، خندیدل، د کورنۍ د غړو پېژندل، او ..........)

۲- د خپلو لیدنو پایلې په خپلو کتابچو کې له ځان سره ولیکئ او په راتلونکي ساعت کې یې ټولګي ته له ځان سره راوړئ.

# د ټولنیزکېدو لاملونه(١ )

په تېر لوست کې مو ولوستل چې انسان د خپلې ټولنې د قواعدو او ارزښتونو په زده کولو سره ټولنیز ژوند او ټولنیز شخصیت پیدا کوي او په یوه ټولنه کې د ژوند کولو لپاره لازمه پوهه او وړتیا تر لاسه کوي.
په دې لوست کې غواړو چې دغه مطلب له لرې څرګندونې سره د ټولنیزکېدو د لاملونو په اړه وڅېړو.

## پرتله يې کړئ



کورنۍ او د هم لوبو ډله د انسان د ټولنیزکېدو د لاملونو له ډلې څخه یو لامل ګڼل کېږي، ستاسو په اند:

١- ماشوم کوم څیزونه د کورنۍ په چاپېریال او کوم څیزونه د خپلو همزولو او هم لوبو په ډله کې زده کوي،

٢- د ټولنیزکېدو له اړخه، کورنۍ ډېر ارزښت لري او که د همزولو او هم لوبو ډله؟ ولې؟

## کورنۍ

کورنۍ هغه ډله او هغه چاپېریال دی چې غړي يې د نَسَبي(خپلوی) او نسبتي تړاوونو له امله له يو بل سره دوامداره، ټینګې او نږدې اړیکې لري. ماشوم په یوه کورنۍ کې نړۍ ته سترګې غړوي او د کورنۍ غړي لومړني خلك دي چې هغه يې پېژني. ماشوم د خپل ژوند په لومړنیو کلونو کې د ټولنیزو ارزښتونو او اصولو په زده کولو کې ډېر تیارى لري، ځکه چې د پیدایښت په پیل کې هغه د یوې سپینې تختې په څېر له هر ډول خبرتیاوو، معلوماتو او وړتیاوو څخه تش دی او دا کورنۍ ده چې په دغو حساسو کلونو کې ماشوم ته ټولنیزقواعد او ارزښتونه ور زده کوي. د مثال په توګه:
مورږ په کورنۍ کې زده کوو چې:

• څرنګه خبرې وکړو؟

- خپل مور، پلار او د کورنۍ مشرانو ته څرنگه درناوی وکړو؟
- د خپل ځان او چاپېريال پاکوالی څرنگه وساتو؟
- د خپلې کورنۍ له غړو سره مينه ولرو؟
- له نورو سره رفتار او ژوند څرنگه وکړو؟
- ښه او بد يوله بل څخه جلا کړو.
- په ديني عقايدو او ارزښتونو باور وکړو.

کورنۍ د آدابو او د ژوند کولو ځينې لارې چارې په قصدي توگه او د يوه پلان او موخې له مخې نوي نسل ته ورښيي، خو د دغو آدابو يوه برخه په ناځاپي او غير قصدي ډول زده کېږي.

د بيلگې په ډول: د مور او پلار اخلاق کېدای شي چې د يوې اخلاقي نمونې په توگه د هغوی ماشومانوته ولېږدول شي، په داسې حا ل کې چې ښايي دوی ونه غواړي چې د هغوی ماشومان دې د دوی لاره ونيسي(د هغوی د اخلاقو تقليد دې وکړي)، نو په دې توگه که چېری مور او پلار د ښو اخلاقو او ښو رفتارونو څښتنان وي د هغوی او لادونه به هم د ښو اخلاقو څښتنان شي ا و برعکس که هغوی بد رفتاره او بد خويه وي د هغوی او لادونه به هم د دغو اخلاقو پيروي کوي او هغه به زده کوي، ځکه چې مور او پلار د خپلو او لادونود شخصيت مهمې بېلگې اوښکارندوی دي. د مور او پلار په څنگ کې د کورنۍ نور غړي او د کوچنيانو نژدې خپلوان چې تل له هغوی سره تگ او راتگ لري او يا تل ورسره اړيکې لري د ماشوم په شخصيت نيغ په نيغه اغېزه لري. په ځانگړې توگه مشران ورونه او خويندې، ترونه، د تره زامن، ترورگانې، نيکونه او د هغو په شان نور چې تل يې له کوچني سره سروکاروي د ماشوم د شخصيت په جوړولو کې مستقيمه اغېزه لري.

په هر هېواد کې مذهبي، قومي او طبقاتي کوچني فرهنگونه مو جود دي چې دا کوچني فرهنگونه د کورنۍ له خوا ساتل کېږي او رواج پيدا کوي. نوی نسل د کورنۍ له خوا له ځانگړو کوچنيوفرهنگونو سره تړاو پيدا کوي، له همدې امله کورنۍ د ماشومانو د شخصيت په جوړښت او د هغوی د هيلو او ارزښتونو په ټاکلوکې ارزښتناکه ونډه لري، خو دا بايد په پام کې ولرو چې د کورنۍ، ټولنې او چاپېريال اغېزې پر انسان باندې د هغه د واک د له منځه وړلو يا ليرې کولو په معنا نه دي. په حقيقت کې د کورنۍ

له چاپېریال او نژدې خپلوانو سره اړیکې د ماشوم د شخصیت د جوړښت لومړنی او جوړونکی لامل شمېرل کېږي.

په افغاني ټولنه کې د مور شخصیت د ماشوم د کړو وړو او اخلاقو په توجیه کې د کورنۍ د هر غړي په پرتله ډېر اغېزمن دی.

## د هم لوبو او همزولو ډله

ماشومان ورو ورو د کورنۍ له چاپېریال څخه د بهر په لورګام پورته کوي او له خپلو همزولو سره په لوبو او تفریح پیل کوي. ماشومان په لوبوکې ټولنیز رولونه لوبوي او له دې لارې د مهمو ټولنیزو رولونو، لکه: د **مور او پلار، ښوونکي، پولیس،** او داسې نورو سره پېژند ګلوي تر لاسه کوي. ماشومان د دغو رولونو په تر سره کولو سره د مهمو ټولنیزو رولونو سره پېژندګلوي ترلاسه کوي او په راتلونکي کې د دغو رولونو د تر سره کولو لپاره تیاریږي.

سربېره پردې، ماشومان د دغو لوبو له لارې زده کوي چې څرنګه یوله بل سره اړیکې ټینګې کړي، څرنګه مخالفت وکړي، څرنګه هوکړه او موافقه وکړي، څرنګه خپلې ستونزې هواري کړي او څرنګه سوله وکړي. دغه چارې ښایي په ښکاره کې ساده په نظر راشي، خو د ټولنیز ژوند لپاره ډېرې اړینې او مهمې دي. همزولي او هم لوبي د ماشوم پر شخصیت او رفتار باندې ژوره اغېزه کوي. هغوی یو له بل څخه د جامو مډل، ځانګړي اصطلاحات او خاص رفتارونه زده کوي او د خبرواترو له لارې چې له خپلو همزولو سره یې کوي، د خپلو هیلو او غوښتنو کچه په ډاګه کوي.

سر بېره پردې د همزولو ترمنځ داسې خلک هم شته چې د مشرۍ( رهبرۍ) رول ترسره کوي او نور د هغه له شخصیت، رفتار او اخلاقو څخه پیروي کوي. داسې خلک پر خپلو نورو همزولو باندې ډېره اغېزه کوي. دغه ټکي ته په پاملرنې سره هغه ژور او پراخ تأثیرات چې همزولي یې کولای شي پر موږ ولري، باید کوښښ وکړو چې خپل دوستان د پېژند ګلوۍ او دقت له مخې وټاکو او هېڅ کله د بدو دوستانو لار ونه نیسو. د هغوی د ناوړه افکارو او عملونو څخه هېڅکله هم پیروي ونه کړو.

د اسلام ستر پیامبر ﷺ دې ټکي ته پام کړی او په ښکاره ډول یې خپل پیروان دې مهمې موضوع

ته متوجه کړي دي او فرمايي: هر وګړی د خپل دوست پر دين وي او له تاسو نه هر يوبايد پام وکړي چې له چاسره دوستي کوي.



## د لوست تکرار

- ........................................
- ........................................
- ........................................
- ........................................



## پوښتنې

۱-- کورنی د ټولنيز کيدو په برخه کې څه اهميت لري؟

۲-- د کورنيو د غړو تر منځ اړيکې څرنګه وي؟ بيان يې کړئ.

۳- انسان د ژوند په کومو پړاوونو کې ډيرو زده کړوته تياری لري؟

٤- موږ په کورنۍ کې کوم ښيزونه زده کوو؟

٥- کورنۍ د ماشومانو د شخصيت په رفتار کې څه رول لري؟

٦- په کورنۍ کې څوک له ټولو زيات د کوچني په شخصيت اغېزمن دي؟

۷- له مور او پلار نه پرته نور کوم وګړي د ماشوم د شخصيت په جوړښت کې اغېزمن دي؟

۸- موږ د خپلو همزولو له لوبو څخه کوم کارونه زده کوو؟

۹- ماشومان له همزولو او هم لوبو سره د اړيکو له امله کوم رولونه زده کوي؟

۱۰- د خپلو هم لوبو او ښودوستانو په ټاکلو کې کوم مسؤوليتونه موږ ته متوجه دي؟



## کورنۍ دنده

له خپلو دوستانو او د کورنۍ له غړو سره د کورنۍ او د همزولو او هم لوبو په اړه مشوره وکړئ او هغه کارونه چې موږ يې د دوی له هريوه نه زده کوو، په يو لېست کې يې وليکئ.

# د ټولنيز کېدو لاملونه (۲)

په تېر لوست کې مو د ټولنيزکېدو دوه لاملونه وپېژندل او په دې لوست کې به د ټولنيزکېدو له نورو لاملونو سره پېژند ګلوي تر لاسه کړو.



## خبرې اترې وکړئ

ښوونځی او ټولنيزې رسنۍ د ټولنيزکېدو دوه نور لاملونه دي.

ستاسو په اند:

۱- په ښوونځي کې کوم شيان زده کوو؟

۲- له رسنيو څخه کوم څيزونه زده کوو؟

۳- د ټولنيز کېدلو د لاملونو له ډلې څخه يې کوم يو ښه دی؟ ولې؟

## ښوونځی

په معاصرو بېلابېلو ټولنو کې نژدې ټول ماشومان د اوه کلنۍ په عمر ښوونځي ته لېږدل کېږي. نن ورځ داسې علوم، تخصص او زده کړې اړينې دي چې کورنۍ نه شي کولای هغه خپلو ماشومانوته ور زده کړي، نوله همدې امله ښوونځي دغه وظيفه پر غاړه اخيستې ده. ښوونځی ماشومانوته د لوستلو، ليکلو او شمېرلو ورتياوې او مهارتونه ور زده کوي.

همدارنګه ماشومان په ښوونځي کې د ټولنيز ژوند له اړينو چارو او برخو، ديني چارو، تاريخ، جغرافيه، کيميا، فزيک، رياضي او عقايدو سره پېژند ګلوي تر لاسه کوي او هغه زده کوي. ښوونځی هغه لومړنی رسمي چاپېريال دی چې ماشوم له هغه سره مخامخ کېږي. ماشوم په ښوونځي کې د رسمي رولونو او دندو سره تړاو نيسي.

د خلکو تعاملات اوچلند يو له بل سره په ښوونځي کې عاطفي نه دي، بلکې اړيکې او چلندونه په دې چاپېريال کې رسمي او غير عاطفي وي. له هغو موضاعاتو او چارو سربېره چې په رسمي توګه په

ښوونځي کې زده کوونکو ته ورښودل کېږي، ډېرې خبرې، موضوعات او اصول شته چې زده کوونکو ته په نا خبره او ناڅاپي ډول ورښودل کېږي.

د بیلګې په توګه:

تاسې د ښوونځي د ورځني پروګرام ترڅنګ زده کوئ چې:

١- نظم مراعات کړئ.

٢- پاکوالی په پام کې ولرئ.

٣- نوبت په پام کې ونیسئ.

٤- د ښوونځي د چارواکو د اوامرو پیروي وکړئ.

٥- په زده کړه، لوستلو او نورو ټولو ښوکارونو کې له نورو سره سیالي وکړئ.

٦- د بریالیتوب د لاسته راوړلو لپاره کوښښ وکړئ.

د ښوونځي ترڅنګ جومات هم د زده کوونکو د ټولنیزې ورتیا په لوړولو کې ډېر مهم او رغوونکی رول لري. ماشومان په جومات کې د تعلیم له لارې دا زده کوي چې له استاد، مشرانو او مقدسو ځایونو په وړاندې باید په ځانګړي ډول برخورد وشي او دیني مظاهرو او شعایرو ته د ژوند د نورو مظاهرو په پرتله ډېر درناوی وکړي. په ماشومانو کې په بنسټیزه توګه ایماني تمایلات او مینه په جومات کې د تعلیم کولو له پړاو څخه پیل کېږي. همدارنګه د جماعت په لمانځه کې ګډون هم په هغوی کې ایماني جذبې لا بډایې کوي. د کوچني اړیکې له هغو کسانو سره چې جومات ته د عبادت کولو لپاره تګ راتګ کوي، پیاوړې کېږي.

له جومات نه وروسته د ژوند چاپېریال او ماحول هم د ماشوم په ژوند ډېره اغېزه کوي، ټولنیز مراسم او هغه عمومي پروګرامونه چې د هغه له امله د ښار او کلي ځینې خلك را ټولیږي هم د ماشوم پر شخصیت مثبت اغېزه کوي.

## ټولنیزې رسنۍ

په تېرو وختوکې به خلکو خپل د اړتیا وړ معلومات زیاتره د شخصي اړیکو له لارې او یا د نورو خلکو په واسطه تر لاسه کول، خو نن ورځ ټولنیزې رسنۍ معلومات په ډیره چټکتیا سره ډېرو خلکو ته رسوي.

د ټولنيزو رسنيو وسايل په لاندې ډول دي: راديو، تلويزيون، انټرنيت، ورځپاڼه او مجله. مور او ډېر نورکسان خپل زياتره وخت د ورځپاڼو يا مجلو په لوستلو، راديو ته په غوږ نيولو، د تلويزيون په ليدلو يا سينماته په ورتګ تېروو. په ځانګړې توګه په ښارونو او هغو کلوکې چې د برېښنا انرژۍ شتون لري او تلويزيوني شبکې او چېنلونه فعاليت ولري، ماشومان له نورو څخه خپل ډېر وخت د تلويزيون په لېدلو تېروي. ټولنيزې رسنۍ نژدې د هرشي په اړه خپلو اوريدونکو او ليدونکوته معلومات ورکوي. د مثال په توګه: د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه د ورځنيو پېښو خبر ورکوي، د هوا او موسم حالات څرګندوي او علمي تکنالوژۍ د پرمختګونو په اړه معلومات او خبرونه خپروي، تاريخي پېښې تشريح او بيانوي، د نړۍ د بېلابېلو وګړو د ژوند، فرهنګ او د ژوند د لارو چارو په اړه خبرې اترې او خبرونه خپروي، د نړۍ د ملتونو عقايد، ارزښتونه او رواجونه تشريح کوي او د هغو پټ اړخونه څرګندوي.

د معلوماتو او خبرونو د پراخې کچې او اندازې په نظرکې نيولو سره چې د رسنيو لخوا خپرېږي او همدارنګه هغې پراخې ګټې ته په پام سره چې له رسنيو څخه اخېستل کېږي، کولای شو دا اټکل وکړو چې رسنۍ د خلکو پر فکر، احساس، عقايدو او دودونو څومره ژور او پراخه اغېزه کولای شي.

بايد په پام کې ولرو چې ټولنيزې رسنۍ کېدای شي مثبته يا منفي اغېزه ولري.د بېلګې په توګه: که چېرې په دقيقه او کره توګه وکارول شي کولای شي چې د ارزښتونو، قواعدو او ځايي عقايدو او رواجونو د ځواکمن کېدو لامل شي او ملي يووالی او هويت ځواکمن کړي. خو له هغه پرته همدغه وسايل کولای شي چې د مذهبي او فرهنګي ارزښتونو او رواجونو د وېجاړۍ لامل وګرځي او ملي يووالي او هويت ته زيان ورسوي.

ډله ييزه رسنۍ او د ډله ييزو اړيکو وسايل انسان عقل او شخصيت ته د لوري ورکولو او تشکل وسايل شمېرل کېږي. که چېرته له هغو څخه د يوه هېواد په آبادولو او سالمه لارښوونه کې ګټه واخيستل شي، کولای شي هغه ملت يو حيرانوونکي پرمختګ او تمدن ته ورسوي او که د دښمن په لاس کې ولوېږي، نو له هغه څخه به يوه تباه کوونکې وسيله جوړه شي چې د هېواد اوس او راتلوونکې به له تباهۍ سره مخامخ کړي.



## د لوست تکرار

- ..................................................
- ..................................................
- ..................................................
- ..................................................
- ..................................................



## پوښتنې

۱- وروسته له کورنۍ، هم لوبو او دوستانونه کوم شی کولای شي چې د انسان په شخصیت اغېزه وکړي؟

۲- ولې کورنۍ خپل اولادونه وروسته له اووه کلنې څخه ښوونځي ته استوي؟

۳- ښوونځی ماشومانو ته کومې وړتیاوې ورزده کوي؟

٤- د وګړو کړه وړه په ښوونځي کې باید څرنګه وي؟

۵- په جومات کې ماشومان کوم شیان زده کوي؟

٦- د ژوند چاپېریال ماشومان او تنکي ځوانان څنګه رهبري کوي؟

۷-ټولنیزه رسنۍ څه شی ته وایي؟



## کورنۍ دنده

په افغانستان کې په ټولنیزو رسنیو او د هغو په پروګرامونو باندې رڼا واچوئ او د هغو مثبتې او منفي اغېزې په دوو مخونو کې ولیکئ.

# د ژوند پړاوونه

## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

انسان د عمر له پلوه په ژوند کې څو پړاوونه تېروي . له ټولنیز اړخه، له دغو پړاوونو څخه هر یو د ځانګړو ارزښتونو او اصولو درلودونکی دی چې باید په پام کې ونیول شي.

دغه واقعیت ته په پام سره لاندې پوښتنوته ځواب ورکړئ:

۱- د عمر پړاوونه کوم دي؟

۲- د هر سني پړاو ارزښتونه او اصول کوم دي؟



ټولنپوهانو د انسان د ژوند لپاره ډېر شمېر پړاوونه بیان کړي دي. دغه پړاوونه په بنسټیزه توګه د ژوند اړوند دي، خو د انسان د ژوند اړوند پړاوونه په عین حال کې ټولنیز هم دي. په ټولنه کې د انسان د ژوند هر پړاو له بل پړاو څخه توپیر لري.

ځکه، نو موږ باید زده کړو چې د ژوند په هر پړاو کې څه ډول رفتار وکړو. د دغو پړاوونو او له هغوی سره جوخت د متناسبو ارزښتونو پېژندل کولای شي له موږ سره د ژوند په پوهېدنه او پېژندنه کې مرسته وکړي. په دغه لوست کې د انسان د ژوند بېلابېل پړاوونه څېړو:

## د وړکتوب پړاو

د وړکتوب پړاو پښخوا ډېر لنډ و، له دې امله چې ماشومان ډېر ژر په کروندو او کار ځایونوکې په کارگومارل کېدل او له لویانو سره یې اوږه په اوږه کار کاوه. خو په اوس وخت کې نژدې په ټوله نړۍ کې ماشومان په ډېره هوساینه کې ژوند کوي او په تفریح او زده کړه بوخت وي.

د وړکتوب یا ماشومتوب دوره د انسان د ناتوانۍ او ناپوهۍ دوره ده. له همدې امله، مور او پلار او د کورنۍ مشران هڅه کوي چې د خپلوکوچنیانو لپاره خوندي او مناسب شرایط چمتو کړي چې د هغوی ماشومان د ټولنیز ژوند له پلوه پرمختگ وکړي. ماشومان په ټیټو عمرونو کې ډېر په تفریح او لوبو بوخت وي او مور او پلار د خپلو ماشومانو لپاره د لوبو ډول ډول وسایل چمتو کوي او هغوی ته خوندي او مناسب شرایط برابروي چې وخت په خوښۍ تېر کړي. نن ورځ د ماشومانو لپاره ځانگړي کتابونه چې په هغو کې ډېر له انځورونو او تصویرونو څخه گټه اخیستل کېږي او همدارنگه تلویزیوني خپرونې د هغو د بوختیا او د ژوند د لارو چارو د زده کړې لپاره چمتو کېږي.

ماشومان معمولاً له کار، اقتصادي بوختیا او چارو معاف دي او ډېر ټولنیز او د کورنۍ مسؤولیتونه او دندې دوی ته نه سپارل کېږي. ماشومان له شپږ کلنۍ نه وروسته په پټو سترگوتقلید کوي او له هر چانه زیات د مور او پلار، مشرانو وروڼو او خویندو نه اغېزمن کېږي، خو له اووه کلنۍ څخه وروسته د ژوند مسئلې او وړتیاوې په دوه طریقو زده کوي:

یوه طریقه له چاپېریال، دوستانو، کورنۍ، رسنیو او داسې نورو څخه په ناخبره توگه اغېزمن کېږي. او دویم دا چې لوست او تلقین زده کوي. اوسني ماشومان تر اتلس کلنۍ پورې د ژوند کوم لوی مسؤولیت نه لري او که چېرته کومه تېروتنه وکړي، نو د لویانو په شان سزا نه ورکول کېږي، خو په اسلامي زده کړو کې د ماشومانو د ودې عمر له اتلس کلنۍ څخه ټیټ ټاکل شوی

دی. په اسلامي فقه کې احتلام ته د هلك او نجلی رسيدل د هغوی د کوچني والی او ځوانۍ ته د رسېدو سرحد بلل کېږي. کله چې هلکان او نجونې احتلام ته رسېږي د ټولنيز او اخلاقو له پلوه هم په هغوکې بدلونونه راځي. له دې بدلونونو څخه يو يې هم د مسؤوليت مننې حس دی.

## د ځوانۍ پړاو

ځواني چې له اتلس کلنۍ څخه پيل کېږي، د انسان د ژوند له پړاوونو څخه يو ضروري پړاو ګڼل کېږي. د دغې مودې لومړني کلونه د ډېرو خلکو لپاره د لوړو زده کړو د ترسره کولو موده ده. همدارنګه ډېر ځوانان واده کوي اوکورنۍ جوړوي. د هغو له ضروري پېښو څخه چې کېدای شي د ژوند په دغه پړاو کې پيښې شي، يو هم په يوه دنده بوختيا ده چې ممکن د ژوند تر وروستيو په هغه دنده کې پاتې شي او هغې دندې ته دوام ورکړي. د ژوند دغه پړاو د يوه ځانګړي سبك لرلو ته اړ دی چې په بېلابېلو ټولنوکې توپيرلري. ځوانان په بېلابېلو ټولنو کې د لويانوپه پرتله مختلفې جامې اغوندي او د رفتار او کړو وړو له اړخه هم ډېر فعال او ځواکمن وي. په ټوليزه توګه، د ځوانانو د ژوند سبك د لويانو په پرتله تر ډېرې کچې توپير لري. کابو په ټولو ټولنوکې ډېر اړين مسؤوليتونه ځوانانو ته نه سپارل کېږي. له دې امله چې هغوی د ژوند په ځينو برخوکې له اړينې تجربې څخه برخمن نه دي.

## د منځنۍ عمر پړاو

د عمر منځنۍ موده چې له ۳۰ کلنۍ څخه پيلېږي، د خپلو ځانګړو غوښتنو او اصولو درلودونکې ده. په دغه موده کې خلك د چارو د تر سره کولو لپاره اړينه انرژي لري او هم يې له ژوند څخه يوه ښه تجربه ترلاسه کړې وي. له دې امله کولای شو چې د ژوند دغه پړاو ته د خلکو د عمر د پخوالي پړاو ووايو. له همدې امله ده چې د کورنۍ او ټولنې په سطح اړين مسؤوليتونه معمولاً هغو خلکوته چې د عمر له پلوه په دغه پړاو کې وي، سپارل کېږي.

خلك د منځني عمر له لرونکو څخه هیله لري چې د دغه پړاو خاص ارزښتونه، قواعد او آداب رعایت کړي. له هغوی څخه هیله کېږي چې د جامو په اغوستلو، کړو وړو او ناسته ولاړه کې د ځوانانو په پرتله ځان تکړه اوځواکمن وښیي. ډیر هغه کړه وړه چې د هغو تر سره کول د ځوانانو لپاره د منني وړ او ښه بریښي، امکان لري چې د منځني عمر لرونکو خلکو لپاره د هغو تر سره کول ښه او د منني وړ نه وي. ځوانان چې ورو ورو د منځني عمر پړاو ته نژدې کېږي، د دې پړاو آداب او قواعد زده کوي.

## د ډېر عمر (بوډا والي) پړاو

د انسان د ژوند وروستی پړاو د بوډاتو ب پړاو دی. په مذهبي او سنتي ټولنو کې، د بوډاتوب دوره د عزت او احترام پړاو دی. په دغو ټولنو کې د زړوکسانو فزیکي فعالیتونه کمرنګه کېږي، خو د هغوی فکري مشارکت ډېرېږي. د ډېر عمرونو لرونکي خلك د ډېرو تجربو د لرلو له امله پریکړې کوي او یا هم لږ ترلږه له دوی سره سلاکېږي. خو په معاصرو او پرمختللو ټولنو کې د ډېر عمر لرونکو خلکو حالت توپیر کوي. کله چې هلته خلك د ژوند دغه پړاو ته ورسېږي، متقاعد کېږي او خپل ځای باید د ټولنې ځوانانو ته ور پرېږدي، خو د اسلام د سپیڅلي دین له نظره لویان ډېر حقوق لري چې له هغې ډلې څخه د هغوی د مادي او معنوي اړتیاوو پوره کولو یادونه وکړو. کورنۍ باید لویانو ته درناوی وکړي او د هغوی د ژوند اړتیاوې لکه، خواړه، پوښاك، او استوګن ځای ورته پوره کړي او تر خپله وسه د هغوی ستونزې حل کړي، که چېرته ناروغ شي، هغوی باید د علاج لپاره ډاکتر او یا روغتون ته بوځي. که چیرې کوم شي ته اړتیا پیداکړي باید ورته چمتو شي او ښه سلوك ورسره وشي او د خدای (جل جلاله) د رضا په خاطر هغوی ته د هو ساینې اوآرامه ژوند زمینه مساعده کړي، د هغوی په وړاندې له سپکاوي او بد چلند نه ډډه وشي. که چیرته لویان خپلوان ونه لري دولتونه مکلف دي چې د دوی د اعاشې، اباتې او د ژوند د هوساینې او سو کالۍ د وسایلو پوره کول په غاړه واخلي.



## د لوست تکرار

- ......................................................................................................................
- ......................................................................................................................
- ......................................................................................................................
- ......................................................................................................................



## پوښتنې

۱- انسان د ټولنیز ژوند په موده کې کوم پړاونه تېروي؟

۲- د ماشومتوب په پړاوکې د مور او پلار دندې د ماشومانو په وړاندې څه شی دي؟

۳- د ماشومتوب پړاو کومې ځانګړنې لري؟

۴- د ځواني دوره له څوکلنۍ نه پیل کېږي او دا پړاو ځوانانو ته څه ارزښت لري؟

۵- د منځني سن پړاو کومې ځانګړتیاوې لري؟

۶- ولې د ډېر عمر خاوندان د پرېکړې او تصمیم نیولو په سر کې ځای لري؟

۷- د اسلامي او غربي نړۍ د بوډاګانو د موقف او موقعیت توپیر په څه شي کې دی؟



## کورنۍ دنده

د ماشومتوب او ځوانۍ پړاو پرتله کړئ.

# د لومړي څپرکي لنډیز

• هره ټولنه خپل ځانګړی فرهنګ لري او په فرهنګ کې داسې اصول او قواعد ځای لري چې د ټولنې غړي د خپلو کړو وړو په ترڅ کې په هغو عمل کوي.

• له نورو سره اړیکې در لودل د ټولنیز ژوند یوه اړتیاده. له نورو سره په اړیکو در لودلو کې بریالیتوب، په ټولنیز ژوند کې زموږ د بریالیتوب لامل ګرځي.

• کورنۍ او د هم لوبو ګروپونه د انسان د اجتماعي کېدو له لاملونو څخه شمېرل کیږي.

• کورنۍ هغه ډله ده چې غړي يې د نَسَبي اونسبتي تړاوونو له امله له یو بل سره دوامداره ټينګې او نژدې اړیکې لر ي.

• ښوونځی او ټولنیزې رسنۍ هم د ټولنیز کېدو دوه نورلاملونه ګڼل کیږي.

•ټولنیزې رسنۍ په لږ وخت کې په ډېره چټکتیا سره اطلاعات رسوي چې دا رسنۍ له راديو، تلويزيون، انټرنيټ،ورځپاڼو، مجلو اونورو څخه عبارت دي.

• د ماشومتوب پړاو، د ځوانۍ پړاو، د منځني عمر پړاو او د زړښت او بوډاتوب پړاو د انسانانو د ژوند بېلابېل پړاوونه دي.

# دویم څپرکي

## ټولنیز نظم

په دې فصل کې لاندې موضوعات زده کوو:

- ټولنیز نظم څه شی دی؟
- د ټولنیز نظم لاملونه (۱)
- د ټولنیز نظم لاملونه (۲)
- ټولنیزې سرغړونې او د هغو ډولونه (۱)
- ټولنیزې سرغړونې او د هغو ډولونه (۲)

# د څپرکي موخې

هیله کېږي چې زده کوونکي د دې څپرکي تر لوستلو وروسته:

- د ټولنیز نظم معنا او ارزښت وپېژني.
- د ټولنیز نظم د لاملونو سره پېژند ګلوي تر لاسه کړي.
- د ټولنیز نظم له رامنځته کولو سره علاقه مند شي.
- ټولنیزې سرغړونې وپېژني.
- د ټولنیزوسرغړونو لاملونه وپېژني.
- له قانون سره علاقمند شي.
- له ټولنیزو جرمونو او سرغړونو څخه کرکه وکړي.

# ټولنیز نظم څه شی دی؟



## پرتله یې کړئ

لاندې پوښتنې ولولئ او بیا د هغو په اړه خبرې اترې وکړئ:

۱- آیا تاسو د شاتو د مچیو او یا د مېږیو خونه لیدلې ده او پوهېږئ چې هغوی څرنګه ژوند کوي؟

۲- د شاتو مچیو او د انسان د ژوند تر منځ توپیرونه او ورته والی په څه کې دی؟

څرنګه چې پوهېږو انساني ټولنه له ډېرو وګړو او ډلو څخه رامنځ ته کېږي، د دغو ډېرو وګړو د شتون، د ګروپونو د ډولونو او په اړیکو کې د اختلاف سره سره ټولنه په دوامداره توګه له یو نظم او سمون څخه برخمنه وي چې موږ کولای شو په هغې کې په هو ساینه ژوند وکړو.

د دغې مسئلې د پوهیدو لپاره یو مثال راوړو: ښایي تاسو د شاتو د مچیو او یا مېږیو خونه لیدلې وي. د شاتو مچې او مېږي ټولنیز ژوند لري او ډېر شمېر یې په یوه خونه کې ژوند کوي. ټولنیز ژوند په دې معنا دی چې هریو یې یوه ځانګړې دنده پرغاړه اخیستې او په ښه توګه یې تر سره کوي.کله چې په سل ګونو مچې په یو ځای کې سره ژوند کوي، که چېرې د دوی ترمنځ کره نظم او همغږي وجود ونه لري، د هغوی ټولنیز ژوند به ډېر ژر له منځه ولاړ شي او دوام به ونه مومي. هغه څه چې د شاتومچې او یا مېږیان د یو بل تر څنګ را ټولوي هغه ځانګړې غریزه ده چې خدای (جَلَّ جَلاَلُه) د دوی په وجود کې پیداکړې ده. هغوی له دې پرته چې د خپلو مشرانو او لوړو چارواکو له حکمونو څخه

سرغړونه وکړي، خپلې چارې پرمخ بيايي او لامل يې دادی چې دوی په همدا شان پيدا شوي دي او له هغه پرته څه نه شي کولای.

د انسان ژوند څه ناڅه د شاتو د مچيو ژوند ته ورته دی، ځکه انسانان هم ټولنيز ژوند لري، ډېرشمېر خلك په يوه ټولنه کې ژوند کوي، له يوبل سره اړيکې لري او له يوبل سره مرسته کوي. خو د انسان د ژوند او د شاتو مچيو د ژوند تر منځ يو بنسټيز توپيرشته، هغه دادی چې: کوم عامل يا لامل چې انسانان د يوبل ترڅنگ سره راټولوي او د ټولنيز ژوند امکان ورته چمتو کوي، پيدايښي خاصيت نه دی، بلکې ارزښتونه، قواعد، قانون او په ټولنيزه توگه يو فرهنگ دی. د نظم منښه د انسانانو له خوا په ارادې او عقلمندۍ سره منځ ته راځي، خو د شاتو د مچيو نظم غير ارادي او فطري بڼه لري.

## ټولنيز نظم څه شی دی؟

د دې لپاره چې د دغې موضوع په مفهوم په ښه توگه وپوهېږو، ټولنيز نظم په دوو کوچنيو او لويوکچو تر څېړنې لاندې نيسو.

## کوچنۍ کچه (سطح)

له ټولنيز نظم څخه په کوچنۍ کچه موخه او منظور دادی چې د ټولنې وگړي په آسانۍ سره د يوبل په کړو وړو پوهېږي او درك کوي يې، له دې امله هغوی کولای شي چې د يوبل له کړو وړو نه وړاند وينه وکړي او په آسانۍ له يوبل سره اړيکې ټينگې کړي، د بېلگې په توگه: کله چې تاسو د يو توکي د پېرېدلو لپاره يو دوکان ته ورځئ، خپله غوښتنه ورته بيانوئ، دکاندار ستاسو په مطلب پوهېږي، که چېرته ستاسو د اړتيا وړ توکي ولري، هغه توکي تاسوته درکوي او په بدل کې يې خپلې پيسې اخلي.

دغه موضوع چې په ښکاره ډېره ساده برېښي، په حقيقت کې ډېره پېچلې او په عين حال کې ډېره ضروري ده. ستاسو اړيکه له دوکاندار سره په دې سبب په ډېره سادگۍ رامنځته شوه چې تاسو دواړو يوه گډه او مشترکه ژبه درلوده او د گډو ارزښتونو او اصولو څخه برخمن وئ او که چېرې هغه يو پردی شخص وي او ستاسو له ارزښتونو او فرهنگي اصولو سره آشنايي ونه لري، تاسو نه شئ کولای چې

يوله بل سره په آسانۍ اړيکې ټينګې کړئ.

نو موږ له دې لارې کولای شو چې له خلکو سره خپلې اړيکې ټينګې کړو ځکه چې موږ ټول له ګډو ارزښتونو او قواعدو څخه برخمن يو. موږ کولای شو د نورو د احتمالي کړوړو او رفتارونو اټکل وکړو او د هغه پر بنسټ له هغوی سره چلند وکړو.

## لويه کچه (سطح)

کله چې د نظم په هکله په لويه کچه خبرې کوو، زموږ موخه په بېلابېلوګوندونو، ډلو، بنسټونو او په ټوله ټولنه کې نظم دی. د بيلګې په توګه: کله چې تاسو سهار وخته نانوايي ته ځئ او ډوډۍ اخلئ، بېرته کورته راځئ او د سهار ډوډۍ خورئ او د ښوونځي په لور روانېږئ ښوونځي کې درس لولئ، هېڅکله دغو ځايونو ته له تګ څخه مخکې شک او ګومان نه کوئ چې امکان لري نن **نانوايي،کور** او يا هم **ښوونځی** خپل ورځني کارته دوام ورنه کړي او په بل کار بوخت وي. له دې څخه څرګندېږي چې ټولنه له يو ډول نظم او قواعدو څخه برخمنه ده چې هرشی پرخپل ځای دي: مختلف مؤسسات، بنسټونه اوګوندونه هره ورځ خپلو عادي کارونو ته دوام ورکوي. خلک د تل په شان خپل کارونه کوي او د هېواد له قانون څخه پيروي کوي.په حقيقت کې ټولنه د يوه ماشين په څېر ده چې له ډېرو وړو او لويو برخو څخه رامنځته شوې او په يوه ځانګړي نظم او همغږۍ سره کار کوي.

آيا له ځانه موکله پوښتلي دي چې ولې بېلابېلې چارې د تل لپاره د خپل معمول جريان له مخې تر سره کېږي او د ټولنې نظم په همدا شان دوام لري؟ د دغې پوښتنې ځواب به په راتلونکو لوستونوکې تر لاسه کړو.



## د لوست تکرار

- ..............................................................................................................
- ..............................................................................................................
- ..............................................................................................................
- ..............................................................................................................
- ..............................................................................................................



## پوښتنې

۱- که په ټولنیز ژوند کې نظم او همغږي نه وي،څه به وشي؟

۲- د شاتو د مچیو او مېږیو ژوند څه ډول دی؟

۳- د شاتو د مچیو او انسانانو د ژوند توپیر په څه شي کې دی؟

٤ ټولنیز نظم په کوچنی سطح څه معنا لري؟

۵- ټولنیز نظم په لویه کچه څه گټه لري؟

٦- یوه بیلگه د نظم د کوچنیسطحې او یوه بیلگه د نظم د لویې سطحې په اړه توضیح کړئ.



## کورنۍ دنده

کوچنی نظم له لوی نظم سره پرتله کړئ.

# د ټولنیز نظم لاملونه(١)

## خبرې اترې وکړئ

تېر لوست ته په پام سره، ستاسو په فکر:



١- آیا زموږ ټولنیز ژوند نظم لري؟

٢- که چېرې ستاسو ځواب مثبت دی، څه شی ددې لامل گرځي چې زموږ ژوند دې نظم ولري؟

لکه څنگه چې په تېر لوست کې مو ولوستل، له دې سره سره چې انسان او د شاتو مچۍ دواړه ټولنیز ژوند لري، د شاتو مچۍ په فطري ډول ټولنیز ژوند ته دوام ورکوي.

له همدې امله ده چې د هغوی ژوند د زرگونو کلونو په لړ کې بدلون نه مومي: د پېړیو، پېړیو راهیسې دوی په یوې طریقې سره خونه جوړوي، په یوه ډول د گلونو شیره راټولوي او له هغه څخه شات جوړوي، په یوه ډول تغذیه کوي او په یو شان کارونه سره وېشي. خو د انسانانو ټولنیزې اړیکې د یو لړ اصولو، قوانینو او معیارونو پربنسټ ولاړې دي چې په ټولنه کې منځ ته راځي او وگړي یو له بل سره هوډ او موافقه کوي چې دغه معیارونه مراعات کړي. نو په دې توگه، د دغو قواعدو او قوانینو پېژندنه چې زموږ د ټولنیز ژوند او اړیکو بنسټ جوړوي زموږ لپاره ډېر ارزښت لري چې په دغه او راتلونکو لوستونو کې به یې وڅېړو.

### ټولنیز ارزښتونه

موږ د ډېرو شیزونو په اړه قضاوت او حکم کوو مثلاً: هغه ښه یابد، سم یا ناسم گڼو. د بیلگې په توگه: یو بل ته درناوی کول، زده کړه، کارکول، رښتینولي او امانتداري ښه گڼو. یو بل ته درناوی نه کول، بې احترامي، لټي، خیانت، چغلي او دروغ ویل بد گڼو.

ټولنپوهان دغه ډول مفاهیم **ارزښت** بولي. ارزښتونه په بېلابېلو برخو کې زموږ د قضاوت کولو

معیارګرځي. له ارزښتونو پرته خلك له یو بل سره د اړیکو په ټینګولو کې له ربړونو او ستونزو سره مخ کېږي، ځکه په دې حالت کې هغوی ګډ اخلاقي معیارونه او اصول نه لري چې د هغو په واسطه خپل او د نورو چلند وڅېړي. آن تردې چې که چېرې په یو ساده کار کې هم ګډ ارزښتونه شتون ونه لري، د پیوستون او توافق امکان نه لیدل کېږي، په دې صورت کې هغوی نشي کولای چې کومې چارې تر سره کړي او په دې پوه شي چې کوم کړه وړه غیر عادلانه او کوم چلند ناسم دی چې په پایله کې دوی له یو بل سره همغږي شي او موافقه وکړي.

## قواعد

که څه هم ارزښتونه زموږ په ژوندکې ډېر اهمیت لري، خو هغوی په هغه پیمانه ټولنیز دي چې نشي کولای په کره او ژوره توګه زموږ چلند تنظیم کړي.

د مثال په ډول: **نوروته درناوی** د یو ارزښت په توګه، موږ ته یوازې وایي چې یو بل ته درناوی کول ښه دی، خو دانه وایي چې څرنګه باید یوبل ته درناوی وکړو. لکه څنګه چې پوهېږو په هره ټولنه کې په یوه ځانګړي ډول یو بل ته درناوی کوي. امکان لري چې یو ځانګړی چلند او یا عمل په یوه ټولنه کې درناوی او په بله ټولنه کې بې احترامي اوسپکاوی وګڼل شي.له دې امله، ارزښتونه باید په ځانګړو تګلارو واړول شي، ترڅو موږ وکولای شو په ورځنیو کړو وړو کې له هغو څخه استفاده وکړو. انسانان له داسې وړتیاو څخه برخمن دي چې کولای شي له دغو عامو ارزښتونو څخه په ځانګړو ټولنیزو حالاتو کې د کړو وړو لپاره کړنلارې جوړې کړي. دغه کړنلارې د **قواعدو** په نامه یادیږي. څنګه چې پوهیږو د اسلام د سپېڅلي دین له ظهور څخه وروسته مسلمانان له اسلامي ارزښتونو اوقواعدو څخه پیروي کوي چې بې شکه او په ټول باور سره د ټولنې دوګړو کړه وړه او چلند په دقیقه توګه تنظیموي او په هغې لارې چې دوی خدای (جَلَّ جَلاَلُه)ته ورنژدې کوي او د دنیا او آخرت نېکمرغی ته یې رسوي، لارښوونه کوي. موږ د همدې قواعدو پر بنسټ دغه ځواك او وړتیا تر لاسه کوو چې په ښوونځي، اداره او بېلابېلو حالاتو کې له یو بل سره اړیکې خپلې ټینګې کړو.

## ټولنيز رول

قواعد يو له بل سره بې تړاوه او خواره واره نه دي، بلکې هغوی په منظمو ډلو کې له يو بل سره اړيکې لري او له دې لارې زموږ اړيکې آسانوي او د ټولنيز نظم په ټينګولو کې مرسته کوي. د بېلګې په توګه: په کورنۍ کې د يوې مور رول او مقام په پام کې و نيسئ. خلک په يوه ځانګړې ټولنه کې له ميندو څخه هيله لري چې د خپلو او لادونو لپاره ځانګړي چارې ترسره کړي. هغه چارې چې موږ يې له ميندو څخه هيله لرو. په حقيقت کې هغه قواعد دي کوم چې د مور په **رول** پورې تړاو لري. يعنې هغه چارې سرته ورسوي چې له ميندو څخه يې هيله کېږي. هر شخص کولای شي څو رولونه ولري. د بېلګې په ډول:

يو کس په کور کې **مور** او **ماندينه**، په ښوونځي کې **ښوونکې** او په ګوند کې **معمولی غړې** وي. چې هر رول په خپل ځای کې سرته رسوي او که داسې ونه کړي هم هغه اوهم نور له ستونزو سره مخ کېږي.

په دې توګه، موږ په هر موقعيت يا دريځ کې چې يو، د هغه په تناسب رول سرته رسوو، په منظم ډول چلند کوو، آن تردې چې نور خلک کولای شي زموږ د احتمالي چلندونو اټکل وکړي. لنډه دا چې د يوې ټولنې وګړي د ګډو ارزښتونو او اصولو په منلو او په بېلابېلو ټولنيزو رولونوکې د هغو په پام کې لرلو او رعايت کولو سره له کړکيچ او نا خوالو څخه مخنيوی کوي او خپلو کړو وړو ته سمون ورکوي. ګډ ارزښتونه او اصول ددې لامل کېږي چې د يوې ټولنې وګړي له يو بل څخه دځانګړو چلندونو هيله ولري او همدارنګه له يو بل څخه انتظار لري چې له يو لړ ځانګړو چلندونو څخه ډډه وکړي. دغه امر د خلکو ترمنځ د اړيکو د نظم، همغږۍ او دسپلين په معنا دی.



## د لوست تکرار

- ...........................................................................................
- ...........................................................................................
- ...........................................................................................
- ...........................................................................................
- ...........................................................................................
- ...........................................................................................



## پوښتنې

۱- ټولنيز ارزښتونه څه شی دي؟

۲- زموږ په ورځني ژوند کې ارزښتونه کوم رول لوبوي؟

۳- قواعد څه شی دي؟ بيان يې کړئ.

٤- رول څه شی دی او تاسې په ټولنه کې کوم رول لوبوئ؟



## کورنی دنده

خپل ښوونځی په نظر کې ونيسئ، له څو رولونو نه نوم واخلئ او هغه خلک چې دا رولونه لوبوي، څوک دي؟

# د ټولنيز نظم لاملونه (۲)

## خبرې اترې وکړئ

لاندې پوښتنې ولولئ او د هغو په اړه بحث وکړئ.



۱- آيا ټولنيز ارزښتونه او اصول د ټولنيز نظم د راوستلو لپاره کافي دي؟

۲- که چېرې فکر کوئ چې دا کافي نه دي، د کومو طريقو او لارو وړانديز کوئ؟

د ډېر ورته والي سربېره چې د انساني ټولنې او د شاتو مچيو ترمنځ شتون لري، انسان د شاتو مچۍ نه ده او انساني ټولنه د نظم او دسپلين له شتون سره چې لري يې، په دوامداره توګه د اختلافاتو، شخړو او قانون ماتولو او له قانون څخه د سرغړونو د پېښو شاهده ده چې د بې نظمۍ لامل ګرځي. د نفوسو ډېروالی، نا انډولي، بې عدالتي، توکم پالي او نور ټول کړکيچ را پاروونکي لاملونه چې بې نظمي را منځ ته کوي، د سرغړونو کچه لوړوي اوخلک بلوا ته هڅوي. دا له امکانه وتلې خبره ده چې يوه ورځپانه را خلاصه کړو او په هغې کې د وژنې، عصبانيت، نيوکې او له قانون څخه د سرغړونې يو رپوټ تر سترګو نه شي. دغه خبره په دې معنا ده چې که څه هم ارزښتونه او اصول د ټولنيز نظم د رامنځ ته کېدو ډېر ضروري لاملونه دي، خو په يوازې ډول کافي نه دي. ټولنه د ارزښتونو او اصولو سربېره د نظم د رامنځ ته کولو او د ټولنيزې ادارې د راوستلو لپاره نورو وسايلو او لارو چارو ته اړتيا لري چې د هغو له ډلې يې ډېر ضروري لارې او وسايل له قانون، پوليسو، محکمې او زندان څخه عبارت دي.

دغه لوست مو د دغو څلورو ارګانونو څېړنې ته ځانګړی کړی دی. د يوه هېواد قانون د دولت، خلکو، مؤسسو او شرکتونو اړيکې له يوبل سره تنظيموي. که چېرته قانون موجود نه وي ګډوډۍ او بې نظمۍ به په ټولنه کې حاکمه شي چې په پايله کې به د هغه ټولنيز نظام د پرزيدو لامل وګرځي.

ټولنه هغه وخت نظم او سمون مومي او د پرمختګ او ودې خواته لار پیدا کوي چې لومړی، ښه قانون ولري، دویم دا چې دا قانون په ښه توګه عملي شي.

## قانون

کله چې انساني ټولنه کوچنۍ وه، نو ټولنه یوازې د ارزښتونو، قواعدو، آدابو او رواجونو په واسطه اداره کېده، خو کله چې نفوس ډېر شو، نو دخلکو د اداره کولو لپاره دولتونه منځ ته راغلل او قانون ته اړتیا پیداشوه.

قانون یوه ټګلاره ده چې د تقنینیه قوې یا پارلمان له خوا تصویب کېږي. د دغو قوانینو یوه برخه د خلکو پرکړنوڅارکوي او خلك يې باید مراعات کړي او په پام کې يې ونیسي، خو بله برخه يې د حکومت په کړنو پورې اړه لري او د حکومت د کړنو څارکوي. په دواړو حالاتوکې، قانون د وګړو او دولت کړنې تنظیموي او له یوې خوا د وګړو ترمنځ اړیکې او له بلې خوا د وګړو او دولت ترمنځ اړیکې سره منظم او همغږې کوي. د نن ورځې هغه ټولنې چې ډېرې لويې او پېچلې دي، له قانون پرته د ادارې وړنه دي.

په ډېرو هېوادونوکې اساسي قانون شتون لري. اساسي قانون ډېر جامع او ټولنیز، خو اړین او ضروري مسایل څېړي او په آسانۍ سره د بدلون وړنه دي.

اساسي قانون د نورو قوانینو بنسټ او د مور حیثیت لري. نور قوانین د اساسي قانون پر بنسټ را منځ ته کېږي څرنګه چې و لیدل شول، اوسنۍ ټولنې پرته له قانون څخه نه اداره کیږي.

په اسلامي ټولنه کې اساسي قانون د اسلامي قانون د احکامو او په هېواد کې د رایج مذهب په رڼا کې ترتیب او جوړېږي که داسې نه وي، نو هغه قانون د شریعت له نظره د اعتبار وړ نه دی او خپل ارزښت او مقام له لاسه ورکوي.

## پولیس

په مدرنو او پر مختللو ټولنو کې قانون یو ضروري شی ګڼل کېږي، خو قانون باید اجرا ئيوي ملاتړ ولري. که چېرې د قانون اجراییوي او د پلي کېدو ضمانت شتون ونه لري، امکان لري چې څوك قانون ته پاملرنه ونه کړي او هغه عملي نه کړي. پولیس هغه ځواك دی چې د نظم د را وستلو او

خوندي کولو او د جرمونو د کنټرول لپاره کار کوي. پولیس د هېواد کورنی نظم او امنیت د مجرمانو او بلواګرو له شره خوندي کوي.

## محکمه

د قضاییه ځواک د پرمختللو ټولنو یو له درې اصلي او بنسټیزه ځواکونو څخه ګڼل کېږي.

قضاییه قوۀ د دې لپاره ده چې که چېرته د خلکو تر منځ یا د خلکو او دولت تر منځ حقوقي یا جنایي اختلافات او دعواوې منځ ته راشي، قضاییه قوه یې د محکمو له لارې فیصله کوي. محکمې ته هغه خلک مراجعه کوي چې په حقونو یې د وګړو، شرکتونو او یا د دولت له خوا تېری شوی وي.

که چېرته محکمه خپله دنده په ښه توګه سرته ورسوي، لومړی به هغه خلک چې حق یې ضایع شوی دی خپل حق ته ورسیږي او دویم به هغه کسان چې کولای شي د نورو حقوق تر پښو لاندې کړي خو تر اوسه یې هغه کار نه وي کړی، له دې ویرې چې محکمې ته به کش شي او سزا به وویني، له تېري به لاس په سر شي.

## زندان

زندان یو له هغو تادیبي او روزنیزو مرکزونو څخه دی چې ټولنه د مجرمینو له شره خلاصوي او پاکوي. له دې کبله زندان د ټولنیز کنټرول له ډېرو مهمو وسایلو څخه شمېرل کېږي. هغه کسان چې د محکمې په حکم په سزا محکومېږي خپله د محکومیت دوره په زندان کې تېروي. یو شمېر خلک له دې ویرې چې په زندان کې ونه لوېږي په جرم او جنایت لاس نه پورې کوي. څرنګه چې ولیدل شول، په مدرنو دولتونو کې د ټولنیز نظم د ساتلو او جرم او جنایتونو د مخنیوي لپاره له قوي وسایلو څخه ګټه اخیستل کېږي. قانون، پولیس، محکمه او زندان په نوې نړۍ کې د ټولنیز نظم او سمون ډېر مهم وسایل ګڼل کېږي.

د نظم او دسپلین ساتلو یو بله وسیله د انسان په طبیعت او خټه کې نغښتې ده او هغه عبارت له ایمان لرلو، صداقت، له خدای (جَلَّ جَلالَه) او د آخرت له سزا نه ویره ده. که چېرته یو انسان د ټینګ ایمان درلودونکی وي او په مرګ او د آخرت په ورځ ایمان او باور ولري او په دې پوه شي چې زموږ

د کرو ورو له ذرې ذرې څخه پوښتنه کېږي، نو دا روحیه په خپله په انسان کې د ننه په پولیس اوړي او هغه اړ باسي چې له جرم او جنایت نه ډډه وکړي.



## د لوست تکرار

- ...............................................................................................
- ...............................................................................................
- ...............................................................................................
- ...............................................................................................



## پوښتنې

۱- کوم عاملونه په ټولنه کې د بې نظمۍ لامل ګرځي؟

۲- هغه لاملونه چې په ټولنه کې د بې نظمۍ سبب ګرځي، نومونه یې واخلئ؟

۳- هغه مهمې وسیلې چې په ټولنه کې د نظُم راوستلو لپاره ترې کار اخیستل کیږي کومې دي؟ نوم یې وا خلئ.

٤- قانون څه شی دی او کومو چارو ته سمون ورکوي؟

٥- که په ټولنه کې قانون نه وي، څه به وشي؟

٦- د قانون له پشتوانو څخه د یوه نوم واخلئ.

۷- د مجرمینو زنداني کول د ټولنې لپاره څه ګټې لري؟

۸- آیا له یاد شویو دیني او حسي وسایلونه پرته معنوي وسایل هم شتون لري چې د ټولنې د نظم او دسپلین په ساتنه کې مرسته وکړي؟



## کورنۍ دنده

د هیواد د اساسي او مدني قانون په باره کې یوه مقاله ولیکئ چې له دوو مخونو څخه کمه نه وي.

# ټولنيزې سرغړونې (۱)



## خبرې اترې وکړئ

لاندې پوښتنې ولولئ او د هغو په اړه خبرې اترې وکړئ:

۱- آيا تاسو داسې څوك ليدلي چې له ټولنيزو اصولو څخه پيروي ونه کړي؟

۲- ولې دغه شان خلك، ټولنيز ارزښتونه او اصول تر پښو لاندې کوي؟

څرنګه چې په تېرو لوستونو کې مو ولوستل، په ټولنه کې ډېر ارزښتونه او اصول شتون لري چې زموږ ټولنيزې اړيکې تنظيموي. ډېر وګړي له دغو ارزښتونو او اصولو څخه پيروي کوي او له همدې امله نظم او آرامي په ټولنه کې حاکم وي. له خلکو څخه هيله کېږي چې دغه ټول ارزښتونه او په ځانګړې توګه د ټولنې اړين او ضروري ارزښتونه رعايت کړي. که چېرې يو شمېر کم رنګه او غير ضروري ارزښتونه او اصول د يو شمېر خلکو لخوا تر پښو لاندې او له پامه وغورځول شي، نور وګړي هغه تر يوې کچې له پامه غورځوي او په پايله کې په ټولنيز نظم کې کومه ستونزه نه رامنځ ته کېږي. خو په ټولنه کې داسې وګړي هم تر سترګو کېږي چې ډېر شمېر اصول په خوښو ځله تر پښو

لاندې کوي، ټولنه او وګړي د دغسې خلکو په وړاندې غلې نه پاتې کېږي او هڅه کوي چې د ډول ډول وسیلو نه په ګټې اخېستلو سره د دوی د کړنو مخه ونیسي. دې ډول خلکوته، سرغړوونکي او مجرمین او د دوی کړنو ته سرغړونه او جرم وایي هغه پوښتنه چې دلته مطرح کېږي داده چې ولې ځینې خلک سرغړونه کوي؟ خو ځیني خلک خانونه د سرغړونو څخه لرې ساتي. د دې پوښتنې ځواب به په دغه او راتلونکي لوست کې تر لاسه کړو. ډول ډول ټولنیز لاملونه شتون لري چې یو شمېر خلک د سرغړونو او بې لارۍ خواته هڅوي. د هغوله ډلې ځېنې ضروري لاملونه يې په لاندې ډول دي:

## د نفوسو اندازه

د نفوس اندازه د هغو لاملونو څخه ده چې په ټولنه کې د نظم حالت معلوموي چې آیا نظم ترګواښ لاندې دی او که نه؟ د ډېرو وګړو لرونکو ټولنو اداره کول د لږو وګړو لرونکو ټولنو په پرتله ډېر ستونزمن کاردي، ځکه هرڅومره چې د وګړو شمېر ډېرېږي، د خلکو مخامخ اړیکې له یو بل سره ستونزمنې کېږي.

له نورو سره د لیدلو، خبرو کولو او پېژندلو لپاره کافي وخت نه وي. کله چې د مخامخ اړیکو کچه راټیټه شي د متقابل عمل کیفیت یعنې د هیجان، عاطفې او د متقابل باور د شدت کچه هم راټیټېږي. له دې کبله له نورو سره دپیلتوب او نژدې والي احساس کمېږي اودجرمي اعمالو کچه لوړېږي. له دې سربیره د نفوسو په ډیروالي کې د سر غړوونکو او جنایت کارو ګروپونو د تشکل امکانات موجود دي، ځکه چې هغوی له ټولنې نه واټن نیولی چې نوي او بیا پیوستون ته اړتیا لري. هغوی معمولاً وړوکې ټولګه جوړوي چې دغه ټولګه غالباًکوچنی فرهنګ او د خپل ژوند ځانګړي سبکونه را منځ ته کوي.

د پاملرنې وړ ده چې په مطلقه توګه د نفوسو ډېروالی د سرغړونو لامل نه ګرځي، خو د سرغړونو اصلي لامل د نفوسو د رونې نشتوالی او ناپوهي ده. بې له شکه هغه ډېر نفوس چې ښه روزنه يې نه وي لیدلې له هغه لږ نفوس څخه کوم چې ښه روزنه او تربیت و نه لري کېدای شي زیاتي سرغړونې ونه لري.

د اسلام د ستر پیامبر ﷺ لارښوونه ده چې د ډېر اولاد راوړل د اسلامي امت د زیاتوالي او د قیامت په

ورځ د پیامبر ﷺ د ویاړ لامل ګرځي، خو د احادیثو شارحین دغه تشویق او هڅونې له اصلاح او روزنې سره تړاو ورکوي. یعنې که چېرته یو کس د دې وس ولري چې خپلو اولادونو ته ښه روزنه ورکړي او د یوه نیک عنصر په توګه یې ټولنې ته وړاندې کړي، ښه او که نه، نو دا اندېښنه او ترغیب هغه چاته نه دی چې د اولادونو د ښې روزنې وس نه لري.

## کډوالي

کډه کول او د ځای بدلول د خلکو په کړو وړو ډېره اغېزه لري. ځینې وخت کډوالي داخلي وي چې یو زیات شمېر خلك د ځینو لاملونو له کبله، لکه: جګړې، قحطی، وچکالیو یا د سېلاو له امله د یوه هېواد دننه له یوې سیمې نه بلې سیمې ته کډه کوي کله هم دا کډوالي بهرنی وي، یعنې یوشمېرخلك د ځینولاملونو له کبله له یوه هېواد نه بل هېواد ته کډه کوي.کله چې پراخې کډوالۍ کیږي ارزښتونه او قواعد بدلیږي او د ژوند طریقه او اړیکې تر یوه حده بدلون کوي. د دې بدلونونو اغیزه په ټولو خلکو یو ډول نه وي او ځینې خلك ډېر تر اغېزې لاندې راځي. همدلته ده چې انحرافي کړه وړه او سر غړونې ډېریږي.

## د نفوس تنوع

د ډېرو هېوادونو نفوس له بېلابېلو قومي، مذهبي او ژبنیو ډلو څخه تشکیلیږي په داسې حال کې چې نفوس له مختلفو ډلو څخه تشکیل شي،د ډېرو انحرافي کړو وړو احتمال وجود لري. په عامه توګه، که چیرته د نفوسو شمېر د طبیعي امکاناتو سره تناسب ونه لري، مهاجرت او د نفوسو بې ځایه کیدل صورت نیسي.که نفوس د فرهنګ، قوم، ژبې اومذهب له لحاظه یو ډول وي، ډېر امکان لري چې په داسې ټو لنه کې جرمونه او سر غړونې کمې وي، خو له دې پرته، ممکنه ده چې د وګړو په کړو وړو اغېزه وکړي او یو شمېر کسان جرمونو اوسرغړونو ته ښکیل باسي.



## د لوست تکرار

- ...........................................................................
- ...........................................................................
- ...........................................................................
- ...........................................................................
- ...........................................................................



## پوښتنې

۱- مجرم (سر غړونکی) چا ته ویل کېږي؟

۲- کو م لاملونه انسان د سر غړونې خوا ته بیایي؟

۳- آیا د ډېر نفوس سمون د لږ نفوس له سمو ن څخه ستونز من دی؟ په دې اړه مو خپل فکر څرگند کړئ.

٤- ډېر نفوس د ټولنې په نظم څه اغېزه اچوي؟

٥- د نفوس تنوع د ټولنې په نظم څه اغیزه لري؟



## کورنۍ دنده

د مهاجرت د لاملونو په باره کې څو کرښې مقاله ولیکئ.

# ټولنیزې سرغړونې(۲)

## خبرې پرې وکړئ

۱- ولې ځینې خلك سر غړونې کوي؟
۲- څنګه کولای شو له سرغړونو څخه مخنیوی وکړو؟



په تېر لوست کې مو په سر غړو نو باندې د نفوسو د اندازې او کیفت د اغیز ې په اړه بحث وکړ. په دې لو ست کې به د سر غړونې او انحراف په اړو ند د ځینو نظریاتو په باره کې ښرګندونې وکړو.

### تر فشار لاندې راتلو نظریه

یو ټولنپوه ویلي دي چې د هرې ټولنې فرهنګ د خلکو لپاره هم موخې ټاکي او ور پېژني یې او هم دې موخو ته د رسېدو روا لارې او وسیلې وربښیي. سر غړونه په لویه کچه هغه وخت منځ ته راځي چې دې مو خو ته د لا س رسی روا لارې محدودې وي او دا محدود یتونه په هغو کسانو چې روا وسایلو ته لا س رسی نه لري ، فشار راولي، د بیلګې په تو ګه: په یوه ځانګړې ټولنه کې په مسلکي او اقتصادي بر یاوو باندې ټینګار کېږي، خو د دې بریاوو د لاس ته راوړلو وسایل کم او محدود دي .په داسې ټولنه کې له یوه لوري خلك د فشار لاندې دي، ترڅو دا اقتصادي بریالیتوبو نه لا س ته راوړي او له بلې خوا د دې بر یالیتو بونو لاس ته راوړل ممکن نه دي. دا ټولنپوه وایي چې ځینې خلك په داسې شرایطو کې په سر غړونې او جرم لاس پورې کوي. یعنې هغو مو خو ته د رسیدو لپاره چې په ټو لنه کې ټاکل شوې دي له نا روا وسایلو نه کار اخلي. د دې نظر په اساس، د دې لپاره چې جرم او سر غړونې کمې شي، باید اجتماعي موخو ته د رسېدو لپاره د روا او مشروعو وسایلو او لارو د پیدا کولو هڅه وشي.

### د تضاد نظریه

ځینې ټولنپو هان په دې عقیده دي چې زیاتره هغه کسان په سر غړونه لا س پورې کوي چې ډېر زور او شتمنې خاوندان دي. هغوی په سترو سیاسي او اقتصادي تېر وتنو لاس پورې کوي خو نیستمن ممکن له یوې هټۍ یا کور نه یو کم ارزښته شی غلا کړي. سره له دې چې د زورورو او نیستمنو

خلکو د سر غړونو کچه د پرتلې وړ نه ده، خو د زور خاوندان سر غړونه داسې تعریف کوي چې ګوندي د فقیرو او نیستمنو خلکو جرم د سر غړونې په معنا دی او خپلې سر غړونې د دې تعریف له کړۍ څخه بهربولي اوپه دې ډول شتمن خلك دهغو سر غړونو او جرمو نو له عواقبو څخه چې مرتکب کېږی په امان کې پاتې کيږي، خو نیستمن خلك د ډېر وړوکي جرم په تور کلونه کلونه د بندي خانې په کنج کې تېروي او د ټولنيز ژوند له اړخه هم بد نوم پرې تپل کېږي، د دې نظريې په اساس، سر غړونه د هرې طبقې له خوا سرته رسېږي، خو یوازې نیستمن او فقیران سزا ویني.

## د ټاپه وهلو نظریه

داسې نظر هم مو جود دی چې کله یو څوک په هر دلیل چې وي يوه سر غړونه وکړي، نو خلك هغه ته سر غړوونکی وايي او په هغه د مجرم ټاپه وهي او کله چې په پرله پسې ډول مو هغه ته د غله، روږدي(معتاد) او يا د مجرم خطاب وکړ، نو هغه په دې باور کيږي چې په ربښتيا هم دی سر غړوونکی اومجرم دی او هڅه کوي چې د خپل په شان نور کسان هم پيدا کړي چې له هغو سره ناسته ولاړه ولري، نو کله چې د مجرمانو په ډله کې ګډ شو له عادي خلکو سره يې فاصله زياتېږي او کېدای شي چې د يو حرفوي مجرم په توګه په لو يو جرمونولا س پورې کړي. دا نظریه موږ ته دا جوته کوي چې کله څوك يوه سر غړونه کوي په هغه باندې د مجرم د ټاپې له وهلو څخه بايدډډه وشي.

## دانتقال نظریه

یوه بله نظریه چې له پخوا څخه په خلکو کې دود ده. داسې ویل کیدل چې سر غړونه اکثراً زده کيږي. کله چې په ځانګړې توګه د کوچنيوالي په پړاو کې، د مجرمينو او سر غړوونکو سره ناسته ولاړه اومعاشرت کوي، د هغو قواعد زده کوي او سر غړونه نه یوازې بده او د غندنې وړ عمل نه بولي، بلکې هغه ممکن يو عادي او د ستاينې وړعمل وبولي.

سعدي شيرازي دا نظریه په داسې ډول لنډه کړيده:

پسر نوح با بـــــــدان بنشست	خانـــدان نبو تـش ګم شـد
سګ اصحاب کـهف روزی چنـد	پی مردم ګرفت ومردم شد

ترجمه:

د نوح زوی کېناست له بـــدانو سره	د پیامبـرۍ کورنـــی يې شوه ورکـه
د کهف د اصحابو سپی یو څو ورځې	وګرځید له سړیو سره، سړی شو، ځکه

د دې لپاره چې له سرغړونې او جنایت نه توبه وشي، باید خپلو دوستانو او هغو کسانوته چې ورسره ناسته ولاړه لري، بدلون ورکړي او د ځان لپاره صالح او له خدای ویریدونکي دوستان وټاکي، ترڅو د هغوی د مرستې او لارښوونې په برکت له ګناه کولو څخه په امان کې پاتې شي او دوی ته د ښو چارو د لټون او له بدو کارونو څخه د ډډې کولو انګېزه وګرځي.



## د لوست تکرار

- ..........................................................................
- ..........................................................................
- ..........................................................................
- ..........................................................................



## پوښتنې

١- سرغړونکی چاته ویل کېږي؟

٢- کوم لاملونه دي چې وګړي سرغړونو ته راکاږي؟

٣- د فشار جوړونې نظریه څه شی ده؟ واضحه یې کړئ.

٤- د تضاد نظریه څه شی ده او په ټولنه کې د سر غړونو په را پیدا کېدو څه اغېزه لري؟

٥- د ټاپه وهلو د نظریې په باره کې څو کرښې ولیکئ.



## کورنۍ دنده

د دې په اړه چې ( ځنګه کولای شو له جرم او سرغړونې څخه مخنیوي وکړو) یو مقاله چې له دوو مخونو څخه کمه نه وي، ولیکئ.

# د ښېړکي لنډيز

• په کوچنۍ کچه له ټولنيز نظم څخه موخه دا ده چې د ټولنې وګړي په آسانۍ سره د يوبل په کړو وړو وپوهېږي او درک يې کړي، له دې امله هغوی کولای شي چې د يوبل له کړووړو څخه وړاند وينه وکړي او په آسانۍ له يوبل سره اړيکې را منځ ته کړي.

• ارزښتونه په مختلفو برخو کې زموږ د قضاوت کولو معيارګرځي. له ارزښتونو پرته خلک له يوبل سره د اړيکو په ټينګولو کې د ربړونو او ستونزو سره مخ کيږي.

• په يوې ټولنه کې خلک د ګډو ارزښتونو او قواعدو په منلو سره او په مختلفو ټو لنيزو چارو اورولونو کې دهغو په رعايت کولو سره،له تاو تريخوالي او ګډوډۍ څخه مخنيوی کوي او خپلو کړو وړو ته نظم اوسمون ورکوي.

• قانون يوه تګلاره ده چې د تقنينيه قوې يا پارلمان له خوا تصويب کيږي. د دغو قوانينو يوه برخه د خلکو پر کړنوڅارکوي او خلک يې بايد مراعات کړي او په پام کې يې ونيسي، ولې بله برخه يې د حکومت په کړنو پورې اړه لري او د حکومت د کړنو څخه څارنه کوي.

•د وګړو شمېر د هغو لاملونو له ډلې څخه دی چې ځرګندوي آيا په ټولنه کې نظم د ګواښ لاندې راغلی او که نه د ډېرو وګړو لرونکو ټولنو اداره کول د لږو وګړو لرونکو ټولنو په پرتله ډېر ستونزمن کار دي.

# دريم څپرکي

په دې څپرکي کې دا لاندې لوستونه لولئ:

- ټولنيز بدلونونه څه شی دي؟
- د ټولنيز بدلونونو لاملونه(۱)
- د ټولنيز بدلونونو لاملونه(۲)

# د څپرکي موخې

له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د دې څپرکي په پای کې وکولای شي:

- دبدلونونو له معنا او مفهوم سره آشنایي پیدا کړي،
- د ټولنیزو بدلونونو مصداقونه وپېژني،
- د ټولنیزو بدلونونو لا ملونه تشخیص کړای شي،
- په خپل ژوند کې د بدلونونو په ښېګڼو او زیانونو پوه شي،
- د ټولنیزو بدلونونو دکنټرو لولو لاره وپېژني،
- د خپل ژوند له مثبت بدلون سره علاقمند شي.

# ټولنيز بدلونونه څه شی دي؟



## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

سره له دې چې په ټولنه کې ډیر شیان زیاته موده ثابت پاتې کېږي او بدلون نه کوي، خو ځینې شیان بدلون کوي، ستاسې په فکر:

۱- ټولنيز بد لونونه څه شی دي؟

۲- څو ډوله بدلونونه چې تاسې هغه لیدلې وي، بیان کړئ.

## د چټک ټولنيز بدلون پيل

په پخوا زمانو کې انسا نانو نسبتاً يکنواخته ژونددرلود او ډېرو نسلونو تقريباً يو ډول ژوند کاوه، يو ډول جامې يې اغوستلې، يو ډول خواړه يې خوړل او يو ډول دود او دستور يې درلود. هغه بدلو نونه چې دانسانانو دژوند په مختلفو برخو کې په سترګو کېدل، ډېر کرار او حتا د ليدلو وړ نه وو، خو د اوه لسمې ميلادي پېړۍ څخه را په دې خوا چې صنعت او تکنالوژۍ وده وکړه، د بشر د ژوند ټولو برخو په ډېره چټکتيا سره پرمختګ وکړ، څرنګه چې نن ورځ د ژوند په هره برخه کې په ډېر سرعت سره بدلونونه راځي. دا مهال هر نسل په ځانګړې توګه او له پخواني نسل څخه په توپير ژوند کوي. هر وګړی د ژوند په پړاو کې بايد ډېرې وړتياوې زده کړي، ترڅو وکولای شي په

خپل شغل او ټولنیز مقام کې پاتې شي. مور نشو کولای په ځوانی کې په هغې پوهې او ورتیا مو چې په کوچنیوالي کې زده کړې دي، خپلو موخو ته ورسېږو، باید په دوامداره توګه خپلې پوهې او د ورتیاوو زده کړې ته دوام ورکړو او خپل ځان د نویو شرایطو لپاره چمتو کړو.

## د ټولنیز بدلون اهمیت او ګټې

د ټولنیزو بدلونونو د پېژندلو مهمه ګټه داده چې موږ د ټولنې د یوه غړي په توګه د خپل ماحول له ټولنیزو جریانونو څخه خبرېږو او همدارنګه په دې بدلونونوکې په خپل رول او په ژوند کې د هغو له اغېزې څخه خبرېږو.

## کوم ډو ل بدلونونو ته (ټولنیز بدلونونه) وايي؟

ټولنپوهان وايي بدلونونو ته هغه وخت ټولنیز ویلای شو چې په ټولنې پورې تړاو ولري نه په فرد پورې. کله هم د یو یا څو کسانو په ژوند کې بدلون راځي، خو په ټوله ټولنه اغېزه نه کوي په دې صورت کې کوم ټولنیز بدلون نه راځي. خو ځینې وختونه بدلون داسې بڼه ځانته غوره کوي چې په ډېریو خلکو باندې اغېزه کوي، په دې صورت کې دې بدلون ته ټولنیز بدلون وېل کېږي. ټولنیز بدلونونه کېدای شي په مختلفو سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او فرهنګي برخو کې را منځ ته شي. د بېلګې په توګه: په هېواد کې سیاسي انقلاب او د سیاسي نظام بدلون کېدای شي یو سیاسي بدلون وګڼل شي، خو باید په یاد ولرو، کله چې کودتا وشي او فرد حاکم شي، بې له دې چې نظام بدلون وکړي، سیاسي بدلون نه راځي. په یوه هېواد کې سیاسي بد لون هغه وخت منځ ته راځي چې په سیاسي نظام کې یې بدلون راشي.

سیاسي بدلون کېدای شي له انقلاب پرته او د رفورم اواصلاحاتو له لارې هم منځ ته راشي. که د اقتصاد په برخه کې د پراختیا پروګرام په هېواد کې طرح او پلې شي او د څو کلونو په موده کې داقتصاد

برخه د پاملرنې وړ وده او پرمختیا وکړي، کولای شو ووایو چې په دې هیواد کې د اقتصاد په برخه کې بدلون راغلی دی. د بیلګې په توګه: که د خلکو د لویې پرګنې اقتصادي ژوند بدلون ومومي او خلک د نیستۍ له حالت څخه ووځي او په دې برخو کې ښکاره ښه والی څرګندشي.

یو بل ټکی چې لازمه ده د بدلون په اړه مطرح شي دادی چې بدلونونه کېدای شي مثبت او یا منفي وي. څرنګه چې د اقتصاد په برخه کې مومثال ورکړ، کېدای شي ځینې بدلونو نه مثبت بدلونونه وګڼل شي. ځکه چې د دې بدلون پایله ټولو خلکو ته ګټوره او مطلوبه ده. خو ځینې بدلونونه کیدای شي خلکو ته زیان رسونکې پایلې ولري. د بېلګې په توګه: په هېواد کې د یرغل ګرو پر ضد له جهاد څخه وروسته کورنۍ جګړې چې د خلکو په ژوند کې د ډېرو بدلونونو لامل وګرځېدلې په عامه توګه د هېواد په ضرر او بې ګټې وي.

## د ټولنیز بدلون پدیدې او نښې

ټولنیز بدلونونه د ژوند په مختلفو برخو کې منځ ته راځي. نن ورځ په دې نړۍ کې چې موږ په هغې کې ژوند کوو ټولنیزې سیالی بدلون موندلی دی. زیاتره نړیوالې ژبې په سیمه ییزو ژبو اوښتې دي او سیمه ییزې ژبې په نړیوالو ژبو بدلې شوي دی. اغېزمن کولو او اغېزمن کېدلو په بې ساري ډول چټکتیا موندلې ده. د خلکو رول د خپل برخلیک په ټاکلو کې پراختیا موندلې، د تعلیم او زده کړې وسایل ډېر شوي دي چې تقریباً ټولو خلکو هغو ته لاس رسی موندلی دی.

په هر صورت ټولنیز بدلونونه که چېرته کنټرول او هدایت شي، کېدای شي د ټولنې د خوزښت ماشین د پرمختګ او ودې خواته مخه وکړي، څرنګه چې د بدلون نه شتون د ټولنې د سکون او د هغې د ځای پر ځای پاتې کېدو او درېدو په معنا وي، نو هیله کېږي چې د ټولنیزو بدلونونو لاملونه چې په راتلونکو لوستونو کې یې ټولو په هوښیارۍ سره له دې ټولنیزو بدلونونو څخه د هېواد او ټولنې په ګټه کې ترې ګټه واخلو.



## د لوست تکرار

• ..................................................

• ..................................................

• ..................................................

• ..................................................

• ..................................................



## پوښتنې

۱- ټولنیزو بدلونونو کوم وخت چټکتیا پیدا کړه؟

۲- بدلون تعریف کړئ.

۳- ټولنیز بدلون څه شی دی؟ له بیلګې سره یې واضح کړئ.

٤- د بدلونونو ډولونه واضح کړئ.

٥- مثبت بدلونونه او منفي بدلونونه واضح کړئ.

٦- د ټولنیز بدلون د موضوع په اړه توضیحات ورکړئ.

۷- په سیاسي ډګر کې بدلون څرنګه پیښیږي؟

۸- د ټولنې د بدلون نښې نښانې او پدیدې بیان کړئ.



## کورنۍ دنده

د اقتصادي بدلون د مثبتو پایلو په اړه څلور کرښې ولیکئ

# د ټولنيزو بدلونونو لاملونه (۱)



## خبرې پرې وکړئ

د تېرشوي لوست مطالبوته په پاملرنې سره لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ.

۱- ټولنيزارزښتونه په بدلونونوکې څه رول لري؟

۲- آيا د ټولنيزو بدلونونو کوم بل عامل هم پېژنئ؟ توضيح ورکړئ.

د ټولنيزبدلون اصطلاح په عمومي توګه د انساني ټولنې د تاريخي بدلونونو لپاره په کار وړل کېږي او هغه عبارت دي له هغو بدلونونو څخه چې د تاريخ په اوږدوکې د يوه ملت او ټولنې د ژوند په قواعدوکې منځ ته راځي.

دا بدلونونه له زرګونو داخلي او بهرنيو عواملو او له هغه ځواک څخه چې د ګروپ د داخلي او بهرنيو شرايطو زېږنده دي، منځ ته راځي.

د ويلوور ده چې د بدلون کچه په پرمخ تللو، ابتدايي، زراعتي او صنعتي ټولنوکې توپير لري. دا په دې معنا ده چې په وروسته پاتې ټولنوکې بدلونونه په آرامۍ سره راځي. په داسې حال کې چې په پرمخ تللو ټولنوکې د بدلونونو اندازه په بدلون ورکوونکو پورې تړاو لري چې په يوه ځانګړي وخت کې له هغه څخه کار اخيستل کېږي. په لنډه توګه ويلای شو چې ټولنيز بدلون هغه بدلون ته وايي چې په ټولنيز جوړښت کې د ننه د ټولنې په حجم يا په ځانګړو ټولنيزو بنسټونوکې او د دې

بنسټونو له اړیکو څخه منځ ته راځي.

ټولنیز بدلونونه د مختلفوعواملو تر اغېزې لاندې منځ ته راځي. د دې لاملونو پېژندنه او د دې لاملونو په واسطه د بدلونونو د راوستلو په طریقې باندې پوهېدل کېدای شي موږ ته چې د ټولنې غړي یو، ډېر ګټوروي.

په دې لوست کې د ټولنیزو بدلونونو مهم لاملونه تر بحث لاندې نیسو.

## ارزښتونه (عقیدې)

د ټولنیزبدلون له مهمو لاملونو څخه یو هم ارزښتونه، قواعد او فرهنګي عقیدې دي. ټولنپوهان په دې عقیده دي چې ځواکمن عقاید هغه دي چې په دین پورې تړاو لري. څرنګه چې پوهېږو د اسلام سپېڅلی دین د هغو خلکو په ژوند کې چې د اسلام دین یې ومانه ډېر ستر بدلونونه یې راوستل. د اسلام مبین دین د ځمکې د کُرې لویې برخې ته بدلون ورکړ. هغه خلک چې د اسلام مقدس دین ته یې مخه وکړه، خپل ظالمانه او دودیز نظامونه یې خوشې کړل او د اسلام آزادۍ بخښوونکي دین ته ور داخل شول او د یوې پېړۍ په موده کې اسلامي ځلیدونکی تمدن په نړۍ کې را ښکاره شو.

هر بدلون چې په اسلامي نړۍ کې منځ ته راغلی د اسلامي آزادۍ بخښوونکو باورونو او عقیدو تر اغېزې لاندې و. بله بیلګه، په مسحیت کې د نوې مذهب په توګه د پروتستانتیزم را پیدا کیدل و. یو ستر ټولنپوه د خپلو اوږدو څېړنو په پایله کې دا ښکاره کړه چې پروتستانتیزم چې د مسحیت د مذهبونو له جملې څخه یو لوی مذهب دی خلک یې دې ته مجبور کړل چې سخت کارونه وکړي او پانګه واچوي چې په پایله کې دا چارې د سرمایدارۍ او صنعتي کیدو لامل وګرځېده، نو له دې کبله دلته هم لیدل کېږي چې عقیدې او باورونه د بشر په ژوند کې د لویو بدلونونو لامل ګرځېدلې دي.

یو شمېر څېړونکي په دې باور دي چې د لویدیځ رنسانس او بیارغونه د اسلامي تعلیماتو په اغېزه منځ ته راغلی دی چې د صلیبي جګړو او په آندلس کې د اسلامي حکومت په واسطه هلته انتقال شوه. حتا یو هسپانوي پوه ویلي دي چې که د شهیدانو د میدان جګړه چې د فرانسې په سویل کې د عبدالرحمن غافقي په رهبرۍ پېښه شوه، بریالۍ شوې وای لوېدیځې ټولنې به دې تمدن ته شپږ پېړۍ مخکې لاس رسی پیدا کړی وای.

## تکنالوژي

د ټولنیز بدلون له مهمو سرچینو څخه یوه هم تکنالوژي ده. تکنالوژي د چاپېریال د کنټرول او ادارې د زده کړې له طریقې او پېژندنې څخه عبارت ده. کله چې انسانان د منابعود راټولولو او لاس ته راوړلو نویو طریقو، د توکو او خدمتونو د تولید طریقو او د هغو د وېش په طریقو لاس رسی پیدا کړ ټولو ټولنیزو اړیکو بدلون پیدا کړ. په دې اړه یوې ساده بېلګې ته پاملرنه وکړئ: کله چې په کرنیزو محصولاتو کې د کلیو خلک له یوې او غویو څخه استفاده کوي، هغوی ډېر زیار باسي، خو لږ محصول لاس ته راوړي او له دې کبله باید ډېرکار وکړي او لږ محصول لاس ته راوړي، خو که چېرته تراکتور او نور کرنیز ماشین آلات کلیو ته لاړشي نو لږ کارکوونکي به کفایت وکړي چې د دې ماشین آلاتو په کار اچولو سره په ډېر محصول لاس ته راوړي، په دې صورت کې به د دې کلیو د ژوند په ټولو برخو کې بدلون راشي چې په پایله کې کېدای شي ډېر وګړي د دې وخت پیدا کړي چې په نورو چارو او له دې جملې څخه په زده کړه بوخت شي. په دې ډول نوښت او د نوې تکنالوژۍ پراختیا په انساني ټولنو کې د بنسټیزو بدلونونو لامل ګرځي.

## ټولنیزه نا انډولي

د ټولنیز بدلون د اصلي سرچینو له جملې څخه ناانډولي او د طبقاتي،جنسیتي او قومي ګروپونو پیدا کېدل دي. د پیسو په وېش کې ، په قدرت، حیثیت، روغتیا، تحصیلاتو او نورو ارزښتناکو سرچینوکې ناانډولي، د هغو کسانو چې ددې سرچینو درلودونکي دي او هغه کسان چې د دې سرچینو نه برخمن نه دي یو ژور تضاد پیدا کوي. دا تضاد د اړتیا له مخې په تاوتریخوالي نه بدلېږي. خو په ټولنیزو اړیکو فشار اچوي چې په پای کې په بدلون تبدیلیږي. هغه کسان چې دا سرچینې په واک کې لري هڅه کوي ترڅو د قدرت په ټینګولو، هغو ته په بېلابېلو پلمو په مشروعیت ورکولو او همدارنګه په زور او جبر سره دا سرچینې وساتي. زیاتره کوم خلک چې دا سرچینې په واک کې نه لري، د شتمنیو د خاوندانو په وړاندې کوم کارنه شي کولای، خو په شکایتونو لاس پورې کوي او ځینې وختونه شورش کوي په داسې حال کې کله چې محرومیتونه ډېرشي او خلک وکولای شي، په خپله سازماندهی لاس پورې کړي، ډېر ستر بدلونونه به په ټولنه کې منځ ته راشي. کله چې نا انډولي داسې ځانګړې او کوچنې فرهنګونه منځ ته راوړي چې د فرهنګي یووالي، د دوامداره ټولنیز جوړښت

او د مالي سرچينو درلودونکي وي، بيا د سياسي فشارونو په مرسته کېداى شي بدلونونه رامنځ ته کړي. په دې توګه فرهنګي او ټولنيزه نا انډولي د بخار د ديګي په شان ده چې د هغه سرپوښ د يوې مودې لپاره کولاى شو ټينګ وتړو، خو فشار کرار، کرار زياتوالى (تراکم) پيدا کوي او د بدلون لامل ګرځي. په داسې مواردو کې بدلون زياتره ډېر ګړندى او له تاوتريخوالي سره منځ ته راځي.



## د لوست تکرار

- ..........
- ..........
- ..........
- ..........



## پوښتنې

۱- د بدلون لاملونه کوم دي؟ نوم يې واخلئ.

۲- ټولنيز ارزښتونه په ټولنيز بدلون کې څه رول لري؟

۳- ټولنيزې عقيدې په ټولنيز بدلون کې کوم رول لري؟

٤- ټولنيزبدلونونه په لويديځ کې څرنګه د اسلامي فرهنګ په اغېزه منځ ته راغلل؟

٥- د کوچني او اساسي بدلونونو څنګه توپير کولاى شو؟

٦- تکنالوژي په ټولنيز بدلون کې کوم رول لوبوي.



## کورنۍ دنده

د نا انډولي او په ټولنيز بدلون کې د هغه د رول په اړه څو کرښې مقاله وليکئ او بيا يې په ټولګي کې ولولئ.

# د ټولنیزو بدلونونو لاملونه (۲)



## فکر وکړئ او ځواب ووایئ

یوه کورنۍ په نظر کې ونیسئ چې په هغې کې څلور کسان ژوند کوي. وروسته له څو کلونو څخه د هغوی شمېر لسو کسانو ته رسېږي. اوس، نو ووایئ چې:

۱- د هغوی په اړیکو کې کوم بدلونونه راغلي دي؟

۲- په اقتصادي برخه کې کوم بدلونونه کېدای شي، منځ ته راغلي وي؟

د ټولنیزو بدلونونو مهم لاملونه مو په تېیر لوست کې ولوستل او ځینې به یې په دې لوست کې ولولئ.

### د نفوسو اندازه

د نفوسو جریانونه او وده کولای شي. د ټولنیزو بدلونونو په راوستلو کې د فشار لامل وګرځي. کله چې د نفوسو شمېر زیاد شي، د اقتصادي تولیداتو نوي بڼې ته خوړو، استوګن ځای، پوښاک او په ښار کې د استوګنې په برخه کې اړتیا پیدا کوي. او د نا آرامو پرګنو د قانوني کېدو او کنټرول لپاره نویو حقوقي او سیاسي سازمانونو ته اړتیا پیدا کوي. د ځوان نسل د ټولنیز کېدو لپاره د نویو ښوونځیو جوړولو او د ښوونې د نوي سیستم ایجادولو ته اړتیا پیدا کېږي او بدلون ته اړتیا همدارنګه دوام پیدا کوي.

له دې امله د نفوسو وده د اساسي ځواب او بدلون غوښتونکی ده. همدارنګه کېدای شي هغه نفوس چې د کمښت په حالت کې وي، هغه هم په ډېر کم ګړندي توب سره، د بدلونونو د منځ ته راتللو لامل ګرځي. خو کله چې نفوس کم شي، نو په اقتصادي برخه کې به د کارګرانو کمښت او په ښوونځيو کې به د ماشومانو کمښت راشي.

نفوس د عمر د جوړښت له کبله هم کېدای شي د بدلونونو د راوستلو لامل شي. هغه ټولنه چې ځوان نسل يې د لوړ عمر د نسل په پرتله د کمېدو په حال کې وي ستونزې رامنځته کوي. څرنګه چې د امريکا په متحده ايالاتو او اروپايي هېوادوکې دا ستونزه شتون لري. دا ستونزې د لوړعمرو خلکو د ملاتړ لپاره د کافي مالياتي عوايدو پيدا کول دي. همدارنګه هغه ټولنې چې د ځوان نسل له زياتوالي سره مخامخ دي، څرنګه چې د لاتيني امريکا په هېوادونو، آسيايي و افريقايي هېوادونو کې لېدل کېږي، ستونزې منځ ته راوړي. دا ستونزې ځوان نسل ته چې د ودې په حال کې دي د ښوونځيو او مدرسو جوړولو، د وظيفو پيدا کولو او د ټولنيزو خدمتونو تأمينول دي. چې زياتره د سياسي رهبرانو مشروعيت کمزوری کوي او په پايله کې په سياسي بنسټونو او مؤسساتو کې بدلون راځي.

## مهاجرت او د نفوسو ځای پرځای کېدل

ديوې ټولنې د ننه يا بهر يا د هغې مهمو سيموته ( لکه پلازمېنه) مهاجرت کول هم د ټولنې په جوړښت ډېره اغېزه لري. بهر ته مهاجرت هم پر ټولنه ډېره اغېزه کوي، خصوصاً که چېرته د هېواد د اتباعو يوه ځانګړې طبقه ټولنه پرېږدي او يا که تحصيل وکړي او مسلکي ځواک مهاجرت وکړي چې هغه ته مغزي تښتېدنه هم وايي، نو په هغه صورت کې اقتصاد، حکومت او ښوونځي به تر بدې اغېزې لاندې راشي. همدارنګه که مزدور کاران مهاجرت وکړي، نو د کار په ځواک کې به کمښت راشي، خو که چېرته د نيستمن هيواد وګړي کډه وکړي اکثراً د هغوی مهاجرت په حکومت، ښوونځيو او ټولو نهادونو باندې به د فشار د کموالي لامل وګرځي.

## د مهاجرت د اغېزو په اړه څه پوهېږئ؟

له یوې سیمې نه بلې سیمې ته مهاجرت کول هم په مهاجرو او هم په هغو ټولنیزو سازمانونو او ډلو کې چې دا مهاجر په هغو کې د ننه ځای پر ځای کېږي. مثبتې او منفي اغېزې را منځ ته کوی. له تاریخي پلوه د مهاجرت له معنا ډکه پایله د فرهنگ دودول ( خپرول) دي. د فرهنگ یووالی هغه وخت منځ ته راځي چې مهاجرین له اصلي اوسیدونکو سره واده وکړي چې د دې اړیکو په پایله کې نوي نسلونه منځ ته راځي.

بیالوژیکي اختلاط د مهاجرت له اغېزو څخه گڼل کېږي. دا که چېرته د مهاجروقومونو د زور له امله وي او یا په سوله ییز ډول وي او یا د استعمار غوښتونکو عملیاتو تر پوښښ لاندې وي، مهاجرت په لویو ټولنو کې د ښارونو د پراختیا او د ښاري فرهنگ د پراختیا لامل گرځي. لنډه دا چې داسې ټولنه نشته چې بدلون ونه کړي او یا د بدلون لامل و نه لري. حتا ډېرې غیر فعاله ټولنې هم له بدلون سره مخامخ کېږي چې له یوه حالت څخه بل حالت ته بدلون کوي. ډېر مهم بدلونونه: د نفوسو لاملونه، د تکنالوژۍ جوړښت، اقتصادي بنسټ، ارزښتونه،نظریات او تضادونه دي.

کیدای شي د بدلونونو لامل اشخاص لکه: رهبران او د روښانه فکر خاوندان هم وي. د بدلونونو په وړاندې تل ځینې مقاومتونه موجودوي چې معمولاً د مقاومتونو له جملې څخه ډېر شدید مقاومت له سازمانونو څخه سرچینه اخلي، د ودیز کړه وړه د هغو د دوام سبب گرځي او په پایله کې ډېرې چارې بدلون کوي.



### د لوست تکرار

• ..........................................................................................

• ..........................................................................................



### پوښتنې

۱- نفوس څه ته وايي او په ټولنيزو مسايلو کې څه رول لري؟

۲- د څو ډوله مهاجرتونو نوم واخلئ.

۳- مهاجرت څه شی دی او لامل يې څه دي؟

٤- په ټولنې باندې د مهاجرت د اغيزې په اړه توضيحات ورکړئ.

۵- مذهبي عقايد د ټولنې په بدلون کې څه رول لري؟



### کورنۍ دنده

د ټولنيزو بدلونونو د څو لاملونو لست جوړ کړئ او بيايې په ټولګي کې ولولئ.

## د دريم څپرکي لنډيز

• د ټولنيز بدلون اصطلاح په عمومي توګه د بشري ټولنو د ټولو تاريخي بدلونونو په اړوند استعماليږي. او عبارت له هغو بدلونونو څخه دي چې د تاريخ په اوږدو کې د يوه ملت د ټولنيز ژوند په اصولو کې منځ ته راځي.

عمومي بدلون، هغه بدلون دی چې په ټولو ټولنيزو نظامونو کې منځ ته راځي او په بل عبارت، که چېرته په ټول ټولنيز نظام کې ټول شيان بدل شي او د هغه هويت بدلون وکړي. په هغه حالت کې عمومي بدلون راځي.

• ټولنيز بدلون د هغو لاملونو مجموعه ده چې په متقابله توګه او په يوه وخت کې عمل کوي او يو په بل اغېزه کوي.

• په هر ځای کې چې په فرهنګ کې نوي عناصر را ښکاره شي او همدارنګه د فرهنګ محتوا او جوړښت بدل شي، فرهنګي بدلون منځ ته راځي.

• عقايد د نړۍ او د ټولنې د ماهيت په اړه مهمو مفاهيموته ويل کېږي چې خلک د هغو سموالی د واقعيت په توګه قبلوي.

•د مهاجرت اصطلاح له خپل وطن او دولت نه تګ بل دولت ته ويل کېږي او يا په بل عبارت د خلکو حرکت له يوې جغرافيايي سيمې څخه بلې جغرافيايي سيمې ته مهاجرت ويل کېږي.

# څلورم څپرکی

## ټولنیزې نابرابرۍ

په دې څپرکي کې لاندې درسونه زده کوو:

• ټولنیزه نابرابري او د هغوی نښې څه شی دي؟

• طبقاتي نابرابري

• جنسیتي نابرابري

# د څپرکي موخې

زده کوونکي به د دې څپرکي ترلوستلو وروسته:

- د ټولنيزو نابرابريو مفهومونه او مصداقونه وپېژني،
- د ټولنيزو نابرابريو له ډولونو او لاملونو سره به آشنا شي،
- د طبقاتي او جنسيتي نابرابريو توپير به وکړای شي،
- د ټولنيزو نابرابريو د کميدو او را ټيټيدو له لارو سره به آشنا شي،
- د ټولنيز عدالت له مفهوم سره به آشنا شي،
- له ټولنيزعدالت سره به مينه پيدا کړي.

# ټولنيزې نابرابرۍ څه شی د ي؟



## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

کوم خلك چې په يوې ټولنه کې ژوند کوي او د با ارزښته ټولنيزو منابعو، لکه: شتمني، ځواك ( قدرت) او ټولنيزموقف څخه په مساوي ډول برخمن نه دي. ستاسې له نظره :

١- ولې ټول خلك له شتمنيو او قدرت څخه په مساوي توګه برخمن نه دي؟

٢- آيا دغه توپير او نابرابري عادلانه دی او که نه ؟ خپل دلايل وړاندې کړئ.

په بشري ټولنو کې وګړي او ډلې په ټولنيزه توګه د شتمنی، مال، سياسي قدرت او منزلت او ټولنيز درناوي څخه په مساوي ډول برخمن نه وي او نه دي.

ځينې ګروپونه د اقتصادي، سياسي، قومي، مذهبي او نورو تړاوونو له کبله د زياتو امتيازونو څخه برخمن وي او ځينې نور يې د ډېرو لومړنيو ( ابتدايي) امتيازونو څخه هم بې برخې وي. د اساسي سرچينو د نابرابروېش له مخې ځينې وختونه د وګړو تر منځ طبيعي توپير اوکله ټولنيز او اقتصادي غير عادلانه جوړښت وجود لري. د بېلګې په توګه: د اساسي يا بنسټيزو سرچينو نابرابروېش په دې خاطر وي چې کله کله ځينې وګړي د نورو په نسبت د زيات فکري او فزيکي (جسمي) ځواکمنې څخه برخمن وي. لکه دا چې دوه کسه پر دوو ټوټو ورته ځمکو باندې کار کوي. خو له دوی

ځخه یوکس د خپل ډېر زیار او کار له امله د بل کس په پرتله ځو برابره حاصل تر لاسه کوي. که څه هم په کوچنی ټولنه کې یو ډول نه یو ډول نابرابري شته، خو که چېرې دغه نابرابري د ټولنیزو توپیرونو په خاطر وي ، نو د اسلام سپېڅلی دین او انساني سلیم عقل هغه نه مني. د ټولنیزو توپیرونو ځینې ډېرې مهمې نښې او آثار په لاندې ډول دي:

## د ټولنیزواټن کچه ( اندازه)

ټولنیزه واټن د طبقو، نژادي او جنسیتي ګروپونو ترمنځ په مختلفو ټولنو کې توپیر لري. په ځینو کې دغه درز زیات نه وي چې په پایله کې د دوی ترمنځ توپیر هم لږوي، خو کله دغه درز زیات وي. له ټولنیز درز ځخه زموږ موخه د شتمنۍ، قدرت او ټولنیز منزلت څخه د مختلفو ګروپونو برخمن کېدل دي. په ځینو ټولنو کې یو کم شمېر خلک د شتمنۍ او قدرت تر ټولو زیاتې سرچینې په واک کې لري، خو د خلکو سترې پرګنې د دغو سرچینو د ډېرې کمې برخې څخه برخمنې دي چې د دوی لومړنۍ اړتیاوې هم نشي پوره کولای.

د امتیاز لرونکو ګروپونو او عادي خلکو د ژوند کولو وضعیت او فرهنګ ته په پاملرنې سره وینو چې د دوی تر منځ زیات توپیر موجود دی، په دې صورت کې د خلکو تر منځ ټولنیز درز زیات وي. خو که چېرې د خلکو تر منځ توپیر زیات نه وي، په دې صورت کې به ټولنیزدرز هم کم وي.

## ټولنیز خو ځښت

ټولنیز خوځښت په ټولنیزو مقامونو کې د افرادو ځای پرځای کیدو ته ویل کېږي. د بېلګې په ټوګه: هغه ځوک چې په یوه بزګره کورنۍ کې پیدا شوی وي، که چېرې وکړای شي چې د خپل شخصي کوښښ او مناسبو زده کړو په واسطه دولتي لوړو پستونو ته ځان ورسوي، ویلای شو چې هغه ټولنه له ټولنیز خوځښت څخه برخمنه ده. خو که چېرې ټولنه هغه چاته چې په خوارو کورنیو کې پیداکیږي لوړو پوړونو ته د رسېدو اجازه ورنه کړي، په دې ډول ټولنو کې ټولنیز خوځښت وجود نه لري. د ټولنیزخوځښت کچه هم کېدای شي چې کمه او یا زیاته وي.

هغه ټولنې چې ټولنیز خوځښت پکې زیات وي، نابرابري پکې لږه او یا دا چې د هغې د لړېدو پرخوا درومي. څکه چې وګړو ته د دې اجازه ورکوي چې په ټولنیزو چارو کې ځانونه ځای په ځای کړي او خپلو ځانونو ته ارتقا ورکړي؛ خو هغه تړلې ټولنې چې په ټولنیزو چاروکې خپلو خلکو ته اجازه نه ورکوي چې په اداري چارو کې ځای په ځای شي، نابرابري پکې ډېره زیاته وي. له دې کبله ټولنیزخوځښت نشتوالی د ټولنیزې نابرابرۍ له مهمو نښو څخه دی. نابرابري په زیاتو وختونو کې په ټولنه کې ستر بدلونونه او یا انقلابونه را منځته کوي خو زیاتره د هغه چا ترمنځه چې د ځانګړو سرچینو څخه برخمن وي او هغه څوک چې له دغو سرچینو څخه بې برخې وي، زیاتې شخړې او جګړې رامنځته کوي. زموږ شاوخوا زیاتره په زړه پورې او جالبې پېښې، لکه: کارګري مظاهرې، د ښځو لپاره د مساوي حقوقو غوښتنه، نژادي او قومي تضادونه، له نابرابریو څخه رامنځ ته کېږي. هغه ټولنیز خوځښتونه چې د بدلونونو غوښتونکي دي، لکه: کارګري جنبشونه، د ښځو لپاره د رایې د حق ورکولو خوځښتونه او د مدني حقوقو خوځښت، ټول د نابرابرۍ په وړاندې د ځواب لپاره رامنځ ته شوې دي او پراختیایې موندلې ده. له دې خوځښتونو څخه را ولاړې شوې اکثره شخړې او تاوتریخوالی د بدلون او ټولنیزکنټرول لاملونه شمېرل کېږي.

د اسلام مقدس دین له څوارلس سوه کاله را په دې خوا د یو ستر او له ښیګڼو ډک دین په توګه عمل کړی دی او ټولنیزې نا انډولې یې له ریښې ورکې کړې دي. په اسلام کې د ټولنې ټول غړي له مساوي او عادلانه حقونو څخه برخمن دي. د بېلګې په توګه: د مریي آزادول د دین له شعایرو څخه شمېرل کېږي چې د ځینو ګناهونو له هغې جملې نه د قصدي روژې خوړلو کفاره ګڼل شوې ده. همدارنګه په اسلام کې د عرب اوعجم ترمنځه هېڅ توپیر نشته. حتا کوم کسان چې په سیاسي بڼه یې د اسلامي دولت په پولو کې ژوند کاوه، خو په خپله مسلمانان نه وو، د یوه تبعه په توګه له ټولو حقونو څخه برخمن وو.



## د لوست تکرار

- ...................................................................................................
- ...................................................................................................
- ...................................................................................................
- ...................................................................................................
- ...................................................................................................
- ...................................................................................................



## پوښتنې

۱- نابرابري تعریف کړئ.

۲- آیا انسانان کولای شي داسې ټولنه جوړه کړي چې په هغې کې هېڅ ډول نابرابري وجود ونه لري.

۳- څنګه کولای شو چې د نابرابرۍ کچه راټیټه کړو؟

٤- که چېرې په ټولنه کې نابرابري چټکه وده وکړي، پایله به یې څه وي؟

۵- اسلام له نابرابریو سره څرنګه مبارزه کوي؟



## کورنۍ دنده

خپل شاخواته وګورئ چې کومې نابرابرۍ ستاسې په شاوخوا کې وجود لري، هغه فهرست کړئ.

# طبقاتي نابرابري



## خبرې يرې وكړئ

تېر درس ته په پاملرنې سره:

۱- په خپل چاپېريال کې څه ډول نابرابري پېژنئ؟

۲- ستاسې په نظر دغه نابرابرۍ د منلو وړ دي که نه؟ خپل دلايل وړاندې کړئ.

د نابرابريو له ډولونو څخه يوه يې په ځانګړې توګه په او سنيو ټولنو کې له طبقاتي ټولنې څخه راپورته شوي نابرابري ده. که څه هم د ټولنيزې طبقې لپاره مختلف تعريفونه شته خو له دې سره سره ويلی شو چې: ټولنيزه طبقه د خلکو له هغو ډول څخه عبارت ده چې د ټولنې د مادي ګټو په لاس ته راوړنه کې د ناسم او توپيري وېش له مخې منځ ته راځي. نو له همدې کبله د هغوی په فرهنګ او د ژوند په سبک او طريقه کې هم توپير را منځ ته کېږي. دغه تعريف ډېر وضاحت ته اړتيا لري: کله چې خلک له يو ډول آسانتياوو( شتمنۍ، قدرت او منزلت) څخه برخمن وي، يو له بله سره ټولنيزې اړيکې ټينګوي او له هغه چا سره چې له متفاوتو آسانتياوو څخه برخمن وي لږې اړيکې ټينګوي. دغه اړيکې د راشه درشه، مېلمستياوو څخه نيولې تر واده، د وينې اړيکې او خپلښې، ټول په برکې نيسي. په دې ترتيب سره د خلکو هر هغه ډله چې د سرچينو يوه ځانګړې برخه په خپل واک کې لري، د ژوندانه او فرهنګ داسې يو ځانګړې ډول او طريقه لري چې له هغه

چا سره چې له دوی څخه پورته او یا له دوی څخه ښکته ژوند لري، ډېر توپیرلري. له دې کبله هغه ډله خلک چې د نسبتاً مساوي منابعو، فرهنګ او د ژوندانه له ورته سبک اوطریقې څخه برخمن دي، یوه طبقه بلل کېږي، لکه څرنګه چې توضیح شوه، د طبقاتو موجودیت د یوې ټولنې د خلکو ترمنځ د یو ډول ټولنیزې نابرابرۍ په معنا دی. طبقې په اوسنیو ټولنو کې یو لړ ځانګړنې لري او د هغه اهمیت له مخې چې لري یې، ځینې یې لږ څه توضیح کوو:

## طبقاتي واټن

دا مهال په پرمخ تللو ټولنو کې سره له دې چې طبقاتي فاصله موجوده ده، خو طبقاتي پوله (مرز) پوره ښکاره نه دی. په بله ژبه د ټولنې د مختلفو طبقو تر منځ کرښه په واضح ډول نه ده ایستل شوې او زیات شمېر خلک شته چې پوره معلوم نه دي چې پورته طبقې پورې اړه لري او که په ښکته طبقې پورې، خو په عنعنوي ټولنو کې دغه پوله ښه څرګنده ده.

## د شتمنۍ غونډېدنه

که څه هم په اوسنیو مدرنو ټولنو کې لږترلږه ټول خلک د ضروري امکاناتو له یوې کمې اندازې څخه برخمن دي، خو شتمنۍ ډېره په غیر عادلانه توګه وېشل شوې ده.

د بېلګې په توګه: د هغې مطالعې پر اساس چې په ۲۰۰۷ زېږدیز کال کې د امریکا په متحده ایالتونو کې تر سره شوې ده څرګندوي چې د هغه هېواد (۳۹٪) شتمني یوازې په سلو کې د یوه فیصد اشخاصو په لاس کې ده او نوره پاتې شتمني د هېواد د ټولو خلکو په لاس کې ده.

لکه څرنګه چې پوهېږو کله چې شتمنۍ په دې ډول په غیر عادلانه توګه وېشل شوې وي، ټولنیز قدرت او منزلت هم له شتمنۍ سره ډېره نژدې اړیکه لري چې هغه به هم په د غیر عادلانه توګه وېشل شوی وي.

لکه څرنګه چې ولیدل شول، په طبقاتي ټولنو کې سره له دې چې د ټولنې غوڅ اکثریت خلکو ته د ژوندانه د امکاناتو ټیټه اندازه تأمینېږي، خو شتمني، قدرت او منزلت په بشپړه توګه په غیر عادلانه ډول وېشل کېږي.

## هر اړخيز زبېښاک ( استثمار)

د هغه دليلونو پر اساس چې د پرمخ تللو طبقاتي ټولنو د ځانګړتياوو په هکله مو معلومات وړاندې کړل، په دې ټولنو کې يو ډول آرام او نرم، خو ډېر زور او پراخ زبېښاک موجود دی. يو محدود اقليت چې د ټولنې ارزښتناکه سرچينې او امکانات يې په لاس کې دي، د ټولنې اکثريت له اقتصادي، سياسي او فرهنګي پلوه زبېښي. د همېشني نابرابر نظام جوړول په ځو لحاظه د مسلطې ډلې په ګټه دي. لومړی دا چې هغه امتيازونه چې دغې ډلې د مخه درلودل، خوندي پاتې کېږي. په دې ترتيب سره حکومتي نظام او قانون لکه څومره چې د زور ورو او شتمنو تر زيات فشار او نفوذ لاندې وي په همغه اندازه به په ټولنه کې د نورو په وړاندې د دوی د امتيازونو د خونديتوب په لاره کې مرسته وکړي.

دويم، دغه مسلطه ډله د ښوونې او روزنې، دندو او استوګنې لپاره ښه او مساعد ځای تر لاسه کوي.

دريم، غوره او وتلو کسانو ته دا امکان برابروي چې له هغو کسانو څخه چې په ټيټ مقام کې دي د کارګر، اجير او مصرف کوونکي تر نامه لاندې ترې کار واخلي او په دې ترتيب سره خپل ژوند هوسا کړي او شتمني زياته کړي.

ځينې پوهان په دې نظر دي چې د نابرابرۍ نظام د زور ورو ممتاز او لوړ مقام خوندي کوي. د دوی له سياليو څخه ډک نفوذ زياتوي او دا امکان ورته برابروي چې هغه کسان چې ښکته ژوند لري، هغوی وزبېښي.

کله چې اسلام د لومړي ځل لپاره د سعودي عربستان په وچه کې راوځليد، په طبقاتي نظام يې د بطلان کرښه راکش کړه. بادار او مريي ته يې په يوه ليکه کې ځای ورکړ، د ابوبکر رضي الله عنه، ابوعبيده، مصعب بن عميره رضي الله عنه چې د ټولنې له شتمنو او باعزته عربو څخه وو او همدارنګه د بلال، ياسر، سميه، عمار او صهيب رضي الله عنهم چې له نېستمنې او فقيرې طبقې او د مريانو له جملې

څخه وو ترمنځه يې برابري راوستله. اسلام له همغه پيل څخه د ښه والي او لوړوالي معيار، تقوا، علم او اخلاقي فضيلتونه اعلان کړل چې په دې ډول د نا انډولۍ ټول مظاهر يې جاهليت او له انسانيت څخه لېرې وګڼل.



## د لوست تکرار

- ..............................
- ..............................
- ..............................
- ..............................
- ..............................



## پوښتنې

١- طبقه تعريف کړئ؟

٢- طبقاتي درز څه شی دی؟ توضيح يې کړئ.

٣- زېښناک څه شی دی؟ کومه طبقه زېښنل کېږي؟ توضيح يې کړئ.

٤- اسلام له ټولنيزې نابرابرۍ او طبقاتي نابرابرۍ سره څرنګه مبارزه کوي؟

٥- په اسلام کې د لوړوالي او فضيلت معيار څه شی دی؟



## کورنۍ دنده

يو څو موارد چې په ټولنه کې د نابرابرۍ لامل ګرځي، فهرست کړئ او په ټولګي کې يې ولولئ.

# جنيستي نابرابري



## فکر وکړئ او ځواب ووايئ

تېر درس ته په پاملرنې سره:
لکه څرنگه چې پوهېږو، د بشري ټولنې يوه نيمايي نارينه او بله نيمايي يې ښځې دي. ستاسې په نظر:

۱- ښځې او نارينه په مساوي توگه له امتيازاتو څخه برخمن دي؟

۲- که چېرې د جنسيتي نابرابری کوم ډول موجود وي، هغه توضيح کړئ.

## جنسيت څه شی دی؟

جنسيت يعني د ښځو له حقونو څخه دفاع او ملاتړ او په ټولنيز، اقتصادي او فرهنگي برخو کې د نارينه او ښځې تر منځ په برابرۍ باور او د ښځو د تحقير، توهين او پر هغوی د ظلم او ستم پر وړاندې مبارزه ده. له جنسيتي مسايلو څخه موخه په اقتصادي، فرهنگي او ټولنيزه ساحه کې د ښځو او نارينه وو لپاره د هغوی د برابرو حقونو تر لاسه کولو او ورسپارلو څخه عبارت ده، ترڅو جنسيتي نابرابري له منځه ولاړه شي. جنسيت د ټولنيزې نړۍ په هره سطحه کې ترسترگو کېږي. جنسيت د خپل ځان او نورو سره د اړيکو د ټينگولو په باره کې له فکر کولو څخه عبارت دی. د کار د ډول او کورني ژوند په ټاکلو کې زياته اغېزه لري. جنسيت د ټولنيزو سلسله مراتبو ټاکونکی دی، ځکه چې په زياتره ټولنو کې د ټولنيزو سرچېنو مهمه برخه په خپل واک کې لري. د جنسيت ټولنيزه معنا نارينه توب او ښځې توب ته د اشارې او ښودلو په معنا ده.

خدای تعالی(جَلَّ جَلاَلُه) انسان نارينه او ښځې له دوو جنسونو څخه پيدا کړي دي. د خدای تعالی د حکمتونو له نمونو څخه يوه يې داده چې په ټولو ټولنو کې د نر او ښځې شمېر کابو سره مساوي

دی. ښځو او نارینه وو د تاریخ په اوږدو کې یو ډول د کار جنسیتي ویش درلود. ښځې په زیاته اندازه د کور په چارو او د خپلو اولادونو په روزنه بوختې وې او نارینه له کور څخه د باندې په کارونو او د خوراك په برابرولو باندې بوخت وو. د کور کارونه که څه هم سخت او ستونزمن وو، خو څرګند عاید یا ګټه یې نه درلوده. په دې دلیل د ښځو ټولنیزمقام ورځ په ورځ را ټیټېده. د دوی ځواکمني او وړتیا د نارینه وو په پرتله لږه په پام کې نیول کېدله او له همدې کبله و چې په اکثره ټولنو کې مهم او با صلاحیته کارونه د نارینه وو په لاس کې وو. نن ورځ د نړۍ په ټولو فرهنګونو کې ښځې له نارینه وو سره متناسب مقام لري او معمولاً هغه چارې سرته رسوي چې لږه ګټه او کم اعتبار لري.

ځیني خلك داسې فکر کوي چې په مهمو او لوړو پستونو کې له کارکولو څخه د ښځو د بې برخې کولو دلیل دادی چې ښځې د فکري او جنسي پلوه لږه ځواکمني لري او همدغه کارونه کوم چې په عنعنوي او دودیز ډول ښځو ته سپارل شوي دي د هغوی لپاره مناسب کارونه دي. واقعیت دادی چې له حیاتي پلوه ښځې او نارینه لږ توپیر سره لري او دغه توپیر د دې لامل نه ګرځي چې موږ ښځو ته د هېڅ ډول ترقۍ او پرمختګ وخت ورنه کړو او بې برخې یې کړو. د اسلام سپیڅلی دین هم ښځې د نارینه وو په څېر انسان بولي. اسلام د ښځې او نر تر منځ تفاوت په رسمیت پېژني، خو د ښځې یا د نارینه په حق کې بې عدالتي په هېڅ وجه نه مني. د اسلام تاریخ د ژوند په مختلفو برخو کې د ښځو د برخې اخیستنې شاهد دی. ښځو د پیامبر ﷺ په فتوحاتو او جګړو کې برخه اخیستې ده. په روایاتو کې راغلي دي چې حضرت فاطمه الزهرا او یو شمېر نورو مسلمانو ښځو د اُحد، حنین او په داسې نورو جګړو کې ګډون کړي دی او همدارنګه په فرهنګي او علمي ډګرونو کې یې ډېر ګډون درلود. د ښځو له منځه داسې کسان هم راڅرګند شول چې په علمي مسایلو کې پوهان شول. د بیلګې په توګه: حضرت عایشه (رض) د احدایثو له سترو راویانو څخه شمېرل کېږي او په خپله د فقهي مسایلو په باره کې ځانګړی لید او نظریات لري. دلته د جنسیتي نابرابرۍ په منفي پایلو او عواقبو باندې بحث کوو.که څه هم جنسیتي نابرابري د افرادو او ټولنو لپاره زیاتې منفي پایلې لري، خو موږ یې دلته د ځینو مهمو په طرحه باندې بسنه کوو:

## د ټولنې وروسته پاتې والی

ښځې د کورنی، ټولنې او د نړۍ د پرمختګ کلي ګانې دي، د دوی پرمختګ د عمومي پرمختګ ضامن دی. څرنګه چې ليدل کيږي د افغانستان زياتره ښځې بې سواده دي او کله چې د ټولنې نيمايي برخه د ښځو په خاطر د اقتصادي، فرهنګي او ټولنيزو مهمو کارونو د اجراکولو څخه بې برخې شي، ټولنه د خپل انساني نيمايي ځواک د کار، فعاليت او نوښت څخه بې برخې او په پايله کې له ودې او پرمختګ څخه وروسته پاتې کيږي.

## ټولنيز کړکيچ يا لانجه

پخوا به ښځې او نارينه دواړه د ټولنيز دود تابع وو او هر چا به هغه کار کاوه چې د ټولنې عرف او فرهنګ به ورته ټاکلي وو، خو نن سبا د ښونې او روزنې، اړيکو او رسنيو د پراختيا او پرمختګ له سببه وضعيت بلکل توپير پيدا کړی دی. اوس ټول پوهيږي چې ښځې هم کولای شي چې د نارينه وو په څير لوړې زده کړې او د ډيرې ګټې او عايد لرونکې دندې ولري او د خپل ظرفيت د لوړيدو او لوړو ټولنيزو مقامونو ته د رسيدو په لاره کې د ښه عقلي ځواک او وړتيا څخه برخمنې وي. له دې کبله دوی نور نشي کولی چې دغه د توپير او تبعيض څخه ډک وضعيت چې ښځو ته د دوی د ظرفيت د لوړتيا، ګټو او کارونو د سرته رسولو مخه نيسي، وزغمي او د هغو له منځه وړلو لپاره ټولې هلې ځلې پکار واچوي.

له دې کبله له هر څه نه دمخه بايد د ښځو پرمختيا ته چې د نسلونو بنسټ ايښودونکې او د پرمختګ جوړونکې دي، ډيره پاملرنه وشي.



### د لوست تکرار

• ...................................................................................................
• ...................................................................................................
• ...................................................................................................



### پوښتنې

۱- نابرابري څه شی ده؟
۲- جنسیت څه شی دی؟
۳- آیا په نړۍ کې د ښځو او نارینه وو په شمېر کې توپیر موجود دی؟
۴- ولې ښځې د نارینه وو په پرتله د نړۍ په زیاتره سیمو کې له اساسي او ټولنیزو ګټو څخه بې برخې دي؟
۵- ښځې په اسلام کې کوم مقام لري؟
۶- د ښځې او نارینه تر منځ د نابرابرۍ او تبعیض لامل څه شی دی؟
۷- جنسیتي نابرابري څه پایلې لري؟ بیان یې کړئ.



### کورنۍ دنده

د افغانستان د ښځو د ټولنیز وضعیت په باره کې یو څو کرښې ولیکئ.

## د خلورم څپرکي لنډیز

• ټولنیزې نا برابرۍ په عامه معنا د وګړو او د مقامونو تر منځ هغو توپیرونو ته وايي چې په ټولنیز ډول پېژندل شوي او خلکو هغه اشغال کړي وي.
• هغه ډلې چې د مادي ګټو په لاس ته راوړنه کې د توپیري او ناسم وېش له مخې جوړې شي طبقه ورته ویل کېږي، نو له همدې امله د دوی د ژوند په تګلارې، طریقې او فرهنګ کې توپیر لیدل کېږي.
• د اسلام مقدس دین قومي او نژادي توپیرونه د هېڅ ډول امتیاز منبع نه بولي، بلکې د انسانانو لوړتیا یوازې په تقوا کې بو لي.
• له جنسیتي مسایلو څخه ښځو او نارینه وو ته د ژوند په سیاسي، ټولنیز او فرهنګي برخو کې د هغو د حقه حقونو ورسپارل دي، تر څو جنسیتي نا برابري له منځه لاړه شي.
کله چې د ټولنې نیمايي برخه د ښځو په خاطرد اقتصادي، فرهنګي او ټولنیزو مهمو کارونو د اجراکولو څخه بې برخې شي، ټولنه د خپل انساني نیمايي ځواک له کار، فعالیت او نوښت څخه بې برخې کېږي او په پایله کې له ودې او پرمختګ څخه وروسته پاتې کېږي.له دې کبله له هر څه څخه د مخه باید د ښځو پر مختیا ته چې دنسلونو بنسټ ایښودونکې او د پرمختګ جوړونکې دي، ډېره پاملرنه وشي.

# پنځم څپرکی

## زموږ ټولنيزې ستونزې

په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولو:

- بې سوادي،
- غريبي او بې کاري،
- د اوسېدلوځای(کور)،
- روغتيا،
- مخدره توکي،
- نا امني او ترهګري،
- نا چاودل شوي مواد،

# د څېړکې موخې

زده کوونکو د دې څېړکي له لوستلو وروسته:

• د سواد ګټې پېژني او په ټولنه کې د بې سوادۍ دله منځه وړلو سره علاقه پیداکوئ

• د غریبۍ او بېکارۍ منفي پایلې پېژني او زیار او کوښښ ته به وهڅېږي،

• د بې کورۍ له ستو نزې سره به آشناشي او له هغې څخه د وتلولار به وپیژني،

• له هغو ستونزو سره چې له مخدره توکو، نا چاودلو موادو، نا امنیو او د روغتیایي خدمتونو له کموالي څخه را منځ ته کېږي، آشنا شي او له هغو سره د مقابلې کولو په لاروچارو پوهېږئ.

# زموږ ټولنیز مشکلات: بې سوادي

## فکر وکړئ او ځواب ووایئ

په نوې نړۍ کې ژوند ښوونې او روزنې ته اړتیا لري. څرنګه چې قرآن کریم فرمایي:

**(اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّکَ الَّذِی خَلَقَ(۱) خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ(۲)اقْرَأْ وَرَبُّکَ الْأَکْرَمُ (۳) الذی عَلمَ بِل قلمِ(۴) عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ(۵)**

ژباړه: ولوله (ای محمده! قرآن) په نوم د رب خپل، هغه رب چې پیدا کړی یې دی (ټول مخلوقات)، پیدا کړی یې دی انسان د تړلیو شویو وینو له ټوټو څخه، ولوله (ای محمده ﷺ! قرآن) حال دا چې ستا رب لوی کریم دی، هغه (رب او پالونکی) چې ښوولی یې دی( انسان ته علم یا خط) په قلم سره، ښوونه یې کړې ده انسان ته د هغو شیانو چې دی پرې نه پوهیده.



هغه چاچې زده کړه نه ده کړې بې سواده بلل کېږي. دې واقعیت ته په پاملرنه:

۱- که څوک سواد ونه لري له کومو ستو نزو سره مخ کیږي؟

۲- هغه ټولنه چې زیات وګړي یې بې سواده وي، له کومو ستونزو سره مخ کیږي؟

انسانانو له ډیرې پخوا څخه د ځمکې پرمخ ژوند پیل کړی، خو په لوستلو او لیکلو نه پوهیدل. په هغه وخت کې د انسانانو ژوند ډیرساده او ابتدایي و. په هغه وخت کې د تېرو نسلونو تجربې په عملي او شفاهي ډول له یوه نسل نه بل نسل ته لېږدول کېدې. د نوې ټولنې غړو د خپل ضرورت وړفنون او مهارتونه د ژوند د ورځنیو چارو په ترڅ کې زده کړې. په هغه وخت کې د زده کړې هېڅ ډول ځانګړې پروګرام وجود نه درلود. بې سوادي تل د هېوادونو د ودې او پرمختیا د مخنیوي لامل

ګرځي. له دې کبله ویلی شو چې بې سوادي یو تباه کوونکی مرض او د بشر د لومړۍ درجه دښمن په توګه د بشري ټولنې په ځانګړې توګه د دریمې نړۍ او وروسته پاتې هېوادونو د ودې او پرمختګ په لاره کې لوی خنډ شمېرل کېږي چې دهغه بشپړله منځه وړل ساده کار نه دی، بلکې دا یو پېچلی جریان دی چې ملي اونړېوالې مرستې ته اړتیا لري. څرنګه چې لیدل کېږي د بې سوادۍ د له منځه وړلو لپاره په نړېواله کچه د هېوادونو او نړېوالو سازمانونو له خوا اقدامات شوي دي.

نن ورځ په ټوله نړۍ کې خلك با سوا ده دي. آن تردې چې ړانده او کاڼه هم با سواده دي. له بده مرغه چې زموږ په ګران هېواد کې له لسو میلیونو څخه زیات خلك د سواد له نعمت څخه بې برخې دي او همداوس پنځه میلیونه ماشومان ښوونځي ته له تللو څخه بې برخې دي. هغه ستونزې چې له دې برخې څخه زموږ هېواد ورسره مخامخ دی، ډېرې زیاتې دي چې ډېر مهم یې عبارت دي له:

بې وزلي، ناپوهي، اقتصادي او ټولنیز وروسته پاتی والی، په مخدره موادو روږدیدل، جرم او جنایت ته مخه کول.

کوم هېواد چې د سواد له نعمت څخه بې برخې وي، تل ځواکمنو هېوادونو ته اړ وي، نو ځکه نیستمنو هېوادوته دا لازمه ده، تر څو علم او سواد ته پاملرنه وکړي او د ښوونځیو پراختیا ته توجه ولري. ځکه چې ښوونځي له نیستی او وروسته پاتې والي څخه د مخنیوي اصلي خوځښت ګڼل کېږي. اوس مهال په نړۍ کې د علم او تکنالوژي په پرمختګ سره او د نړۍ د هېوادونو د زراعتي کېدو او صنعتي کیدو په پایله کې دا هېوادونه په کروندواو د سپکو او درندو صنایعو په فابریکو کې انساني ځواك، باسواده او ماهرو کارګرانو ته اړتیا لري. له دې امله هېوادونه هاند او هڅه کوي، ترڅو د ټولنې وګړي یې باسواده شي، ځکه بې سواده وګړي نه شي کولای په ښه توګه په کروندو او فابریکو کې د کرنې او صنعت د پراختیا او پرمختګ لپاره ګټور کار وکړي.

سواد د هر ډول زده کړې لپاره بنسټیزه وسیله ده. سواد په فرهنګي، سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو فعالیتونو کې د ګډون یو ضروري عنصر بلل کېږي. دا جوته ده چې یو بې سواد وګړی نه شي کولای

خپلې ټولنيزې ستونزې په ښه توګه حل کړي او د خپل ځان او کورنۍ لپاره د ښو خدمتونو لامل شي. کوم وګړي چې د پوره سواد درلودونکي دي، خپله ټولنه او د ژوند ماحول درک کوي  خپل او د ټولنې د ستونزو د حل لارې پيدا کوي.

په داسې حال کې چې سواد د لوستلو او ليکلو وړتيا بولي، خو واقعيت دا دی چې سواد د لوستلو، ليکلو او په ليکل شويو متنونو پوهيدل دي او د پوهېدو او درک معنا دا ده چې وګړي بايد ښه ژبنۍ وړتيا او په پوره اندازه عمومي پوهه ولري. دا وړتيا يوازې د ښوونځي له لوستلو څخه لاس ته راځي.

**بې وزلې او وروسته پاتې والی**: نېستي او بې وزلي د بېسوادۍ د پايلو په لومړي سرکې ځای لري. په معاصرو ټولنو کې کارونه اوشغلونه سواد او مسلکي وړتياو ته اړتيا لري. له دې امله، که څوک سواد ونه لري نشي کولای چې مناسب کار او ښه عايد ولري. کله چې د يوې ټولنې زياتره غړي بې سواده اوکم سواده وي، د دې خلکوله نيستۍ څخه سر بېره، ټوله ټولنه په نيستۍ اخته کېږي، څرنګه چې د دولت د عوايدو مهمه برخه زکات، عشر، ماليات، په شخصي کانونو کې، خمس، وقف او واجبي او نفلي صدقات جوړوي او چې خلک غريب اونيستمن وي، دولت به هم د بيت المال د عوايدو او د مالياتو له کمښت سره  به مخامخ شي او په پايله کې د ټولنې عام امکانات او اړتياوې لکه: لاره، روغتون، ښوونځي، د کونډو، يتيمانو، کڼو، ړندو، معيوبينو، علماو نفقه او د هغو کسانو چې د خلکو په خدمت کې بوخت دي لکه: د دولت د مامورينو، قضاتو، ښوونکو او ډاکترانو مصارف چې اسلامي شريعت په بيت المال کې مقرر کړې دي له کمښت سره به مخامخ شي. همدارنګه په داسې هېواد کې فابريکې او توليدات نه شي کولی وده وکړي چې په پايله کې هېواد په سخته نيستۍ او غريبۍ باندې اخته کېږي.

**روږديدل**: بې سواده ټولنه زياتره دنيستۍ او ناپوهۍ له امله په مخدره موادو د روږدېدو د بلا په لومه کې ښکيلېږي. بې سوادي او ناپوهي له نېستۍ او په پای کې له روږديدو سره ډېرې نژدې اړيکې لري، له دې کبله د ښوونې او روزنې په برخه کې پانګونه او د ښوونې اوروزنې کيفيت ته پاملرنه به

ډیره ګټوره پایله ولري. د یادونې وړ ده چې د بې سوادي زیان رسوونکې پایلې ډېرې زیاتې او پراخې دي، په هغو برخو کې چې موږ پرې بحث وکړ یوازې د دې ستونزو څو نمونې وې.



## د لوست تکرار

- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................



## پوښتنې

۱- بې سوادي څه شی ده؟

۲- سواد تعریف کړئ، زموږ په هېواد کې څو فیصده ښځې او نارینه په لو ستلو او لیکلو نه پوهېږي؟

۳- د بې سوادۍ له امله په هېواد کې کومې ستونزې رامنځته کېږي؟

٤- بې سوادي او روږدیدل څه اړیکې سره لري؟



## کورنۍ دنده

یو بې سواده سړی له یوه با سواده سړي سره مقایسه کړئ او په دې اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ او په ټولګي کې یې ولولئ.

# زمونږ ټولنيزې ستونزې نېستي او غريبي



## فکر وکړئ او ځواب ووايئ

لاندې پوښتنې په غور ولولئ او ځواب ورته ووايئ.

١- ولې انسان غريبيږي؟

٢- د انسان په ژوندانه کې غريبي څه اغيزه لري؟

٣- څنګه کولای شو له غريبۍ او نېستۍ څخه مخنيوی وکړو؟

انسان خوراک، کاليو او د اوسېدلو ځای يا کور او نورو وسايلو ته اړتيا لري.

الله (جَلَّ جَلاَلُه) د انسانانو لپاره ټول د اړيتا وړ شيان د ځمکې په سر او طبيعت کې پيدا کړي دي او انسان ته يې د فکر او د کار کولو توان ورکړی دی چې ترڅو هغه راوباسي او د خپلې اړتيا سره سم له هغو نه ګټه واخلي. که چيرته شرايط داسې برابر شي چې انسان وکولای شي له خپلې پوهې او استعداد نه کار واخلي او طبيعي سرچينې د خپلو اړتياوو د پوره کولو په موخه راوباسي او ترې سمه ګټه واخلي، د غريبۍ او نېستۍ سره به مخامخ نه شي او که چيرته انسان کهالي او لټي وکړي او يا طبيعي او ټولنيزخنډونه يې مخې ته راشي او و نه کړای شي چې د لوی خدای (جَلَّ جَلاَلُه) له دغه نعمتونو څخه ګټه واخلي، نو له غريبۍ او بې وزلۍ سره به مخامخ شي.

## نيستي څه شی ده؟

نېستي يا غريبي د هغو شيانو نه درلودل دي چې انسان هغو ته اړتيا لري. غريبي هغه لوی مصيبت دی چې د تاريخ په اوږدوکې يې بشرځور ولی او ځوروي يې. څرنګه چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: نژدې ده چې غريبي په کفر واوړي. له دې کبله دې پوښتنې ته چې ( ولې انسان نېستمن کېږي؟) ځواب ورکول ډېر مهم دی.

څرنګه چې د دې پوښتنې د ځواب له پيداکولو څخه وروسته به په دې پوه شو چې موږ ولې غريب

یاستو چې لاملونه یې ډیر زیات دي، خوځېړنه یې په دې ځای کې ممکنه نه ده، خو په عام ډول کولای شو هغه په دریو عمومي برخو ووېشو.

## فردي لاملونه

فردي لاملونه چې بیلابېل ډولونه لري، هغو لاملونو ته ویل کیږي چې ریښه یې په خپله په فرد کې ده د مثال په توګه: د فقر او غریبي ډیر مهم فردي لاملونه عبارت دي له:

۱- تنبلي او له کار او هڅې نه ډډه کول.

۲ - بې سوادي او ناپوهي چې د انسان په ژوند کې دکمزورۍ سبب ګرځي.

۳- د مهمو اوګټورو کارونو د سرته رسولو د مهارتونو نه درلودل.

٤- د بدن د غړو معلولیت چې د کارکولو مانع ګرځي. په هغه صورت کې چې انسان په پورتنیو څولاملونو اخته وي په خپل فردي ژوندانه کې له ستونزو سره مخامخ کېږي او غریب اونېستمن کېږي.

## طبیعي لاملونه

خدای (جَلَّ جَلالُه) زموږ د اړتیا وړ مواد په طبیعت کې پیدا کړي دي، د ا مواد په طبیعت کې یو ډول نه وي وېشل شوي. د مثال په توګه:

۱- ځینې ځمکې ډیرې حاصل خیزې او ځینې نورې یې لږ حاصل کوي.

۲- ځینې سیمې معدنونه او د لوړ قیمت منابع لري، لکه: سره زر، اوسپنه، نفت او ګاز،خوځینې سیمې له دې ډول معدنونو څخه بې برخې دي، سربیره پردې، ځیني طبیعي حوادث، لکه: سیلاو، وچکالي او طوفانونه هم د خلکود ثروت او مالونو دله منځه تللو سبب ګرځي. یاد شویو توپیرونو ته په پاملرنه، هغه څوک چې په حاصل خېزو سیموکې ژوند کوي کولای شي په لږ زیار او زحمت سره ډېر حا صل لاس ته راوړي، خو هغه خلک چې په کم حاصله سیمو کې ژوند کوي باید ډېرزیار او زحمت وباسي، خو لږ حاصل لاس ته راوړي. همدارنګه هغه هېوادونه چې د سروزرو، اوسپنې، نفت اوګازو معدنونه لري کولای شي د هغو د خر څلا و په بدل کې ښوونې او روزنې ته پراختیا ورکړي او په عمومي امکاناتو کې زیاتوالي راولي او خپلو صنایعو او خپلې کرنې ته وده او پراختیا ورکړي. په داسې حال کې چې نور هېوادونه له دې ډول امکاناتوڅخه بې برخې دي، نو ویلی شو چې حاصل خیزې ځمکې، مناسبه آب و هوا او قیمتي معدنونه د شمتنیو د لرلو سبب او نه درلودل یې د غربۍ او نیستۍ لامل ګرځي.

## ټولنيز لاملونه

د يادو شويو لاملونو ترڅنګ، ټولنيز لاملونه هم په طبيعي سرچينو د انسان د لاس رسی او يا هغو ته د لاس په نه رسېدو اغېزه لري. طبيعي شتمنی او امکانات په هره ټولنه کې د اقتصادي سيستم په واسطه وېشل کېږي.که دا سيستم عادلانه او د تعصب او تبعيض څخه خالي وي، وګړي د خپل استحقاق له مخې له امکاناتو او صنايعو څخه ګټه اوچتوي او که چيرې اقتصادي او ټولنيز نظام عادلانه نه وي، نو يوازې کم خلک به له دې نعمتونو څخه برخمن او نور خلک به له هغو څخه بې برخې وي. هغه ټولنه هوسا او شتمنه کيدای شي چې هر وګړی يې د خپل لياقت او وړتيا په اساس د ټولنې د امکاناتو او منابعو څخه ګټه ترلاسه کړي.

په ټولنه کې د نيستی او فقر لوی لامل د سياسي، ټولنيز او امنيتي ثبات نشتوالی دی په کومه ټولنه کې چې له سياسي ثبات او آرامی نه بې برخې وي، خلک له زياتو امنيتي ستونزو سره مخامخ کېږي او ټول غښتلي استعدادونه په کړکېچونو کې په مصرف رسېږي او ټول پروګرامونه د خپل سياسي بنسټونو د ځواکمنی او د مخالفينو د له منځه وړلو په لاره کې محدود پاتې کېږي او په پايله کې ټولنه په نيستی اخته کېږي. همدارنګه کله چې په ټولنه کې ټولنيز ثبات موجود نه وي، خلک تل له يوه ښار څخه بل ښار ته تېښته او کډه کوي چې دا حالت له دوی نه د ژوند په چارو کې د نوښت ځواک او توان اخلي او که چېرته له ټولنې څخه امنيت خپل ټغر ټول کړي هېڅکله به د اقتصادي ريښو د قوت او ودې خيال په ذهنونو کې غوټی ونه کړي.

زموږ ګران هېواد افغانستان چې د ځلانده تاريخ او د با ارزښته او قيمتي سرچينو درلودونکی دی، خو په خواشينی سره اوس د ډېرو نيستمنو اوغريبو هېوادونو په ډله کې راځي. د هېواد د غريبی لاملونه په دې تاريخي مرحله کې عبارت دي له:

۱- **د اوږدې مودې جنګونه**: زموږ خلک درې لسيزې د دين او خپل هېواد د آزادی لپاره او وروسته بيا په داخلي جګړو اخته شول په دې موده کې نه يوازې د هېواد د ودې او پراختيا لپاره کار ونه شو، بلکې د ملت موجوده سرمايه هم له منځه لاړه. د هېواد بنسټيز اقتصاد، لکه: کارخانې او اقتصادي تاسيسات د صنعت، کرنې او په نورو ټولو برخوکې په عمومي ډول له منځه ولاړل.

۲- **د بحران په دې کلونو کې د اداري، فرهنګي، ټولنيز نظم او انضباط له منځه تلل**:
د دې نظم اوانضباط په له منځه تللو سره د خلکو په کړو وړو کې د ګډوډی اود با ثباتو اقتصادي فعاليتونو دمخنيوي لاملونه رامنځ ته شول.

۳- **بې سوادي او ناپوهي**: د جګړو د کلونو په اوږدوکې په هېواد کې زیاتره ښوونځي تړلي وو او دا کار د دې سبب شو چې زموږ یونسل تقریباً په عمومي ډول بې سواده او یاکم سواده پاتې شي. په دې ستونزه باندې بریالي کیدل یو ملي عزم ته اړتیا لري چې په سرکې د افغانستان د اسلامي جمهوریت دولت چې د ملت له څواك او ارادو څخه استازیتوب کوي، ریښتینې طرحې جوړې کړي او د خلکو په مرسته یې پلي کړي. ترڅو دغه ملت چې د یوه آزاد او پتمن ژوند مستحق دی، له غریبۍ او نېستۍ څخه چې د دوی د خوارۍ او ذلت سبب ګرځي، خلاصون پیداکړي.

### د لوست تکرار

- ...................................................................................................
- ...................................................................................................
- ...................................................................................................

### پوښتنې

۱- د غریبۍ فردي لاملونه شرحه کړئ.

۲- د غریبۍ د ټولنیزلاملونو نوم واخلئ.

۳- د غریبۍ او فقرطبیعي لاملونه کوم دي؟

٤- ولې زموږګران هېواد له غریبۍ سره لاس اوګریوان دی؟

٥- څنګه کولای شو له خپل هېواد څخه د غریبۍ لمن ټوله کړو؟

### کورنۍ دنده

که و غواړئ د خپلې کورنۍ اقتصادي سطحه لوړه کړئ:

۱- آیا نور منابع په واك لرئ چې وکړای شي له هغو څخه ګټه واخلې؟

۲- آیا دخپلې کورنۍ ځینو غړوته د یوه بل کار وړاندیز کوئ؟

۳- آیا د کورنۍ ځینې غړي د نویو مهارتونو زده کړې ته اړتیا لري؟

د پورتنیو پوښتنو په هکله له خپلو لویانو سره وغږیږئ او ځوابونه یې په خپلو کتابچوکې ولیکئ او ټولګي ته یې واوروئ.

# (زموږ ټولنيزې ستونزې: (استوګنځی او کور

## پرتله يې کړئ

موږ ټول کورونوته اړتيالرو ځينې خلک په کورونو او ځينې نورېې په خيمو او کږديوکې ژوند کوي.

ستاسې له نظره.

١- ولې انسان کورته اړتيا لري؟

٢- که موږ د اوسيدلو ځای ونه لروخه کيږي؟

٣- څه بايد وکړو چې ټول مناسب استوګنځي ولرو؟



په ډيرو پخوا زمانوکې انسانانو د خپلو ځانولپاره د اوسيدلو ځايونه ټاکل او له ګرمی او يخنی څخه د ځان ساتلو لپاره يې کورونه جوړول.

د بشر د پوهې او تکنالوژۍ له پرمختګ سره سم، کورجوړونی هم بدلون وموند. د انسان ساتنې د ضروري اړتياوو له پوره کېدو سربېره، د ښکلاپېژندنې برخې ته هم پام واړول شو. همدارنګه په بيلابيلو ټولنوکې د دوی فرهنګ او ديني ارزښتونو سره سم په مختلفو سبکونو کورونه جوړ شول.

له ډيرو پرمختګونو سره سره چې بشر په بيلو بېلو برخوکې لاسته راوړل، کورونه هم په ډير ښکلي او مجلل او د ژوندانه د هوساينې په ټولو وسايلو مجهز جوړ شول. د استوګنځايونو دکمښت له منځه وړل د بشر له ډيرو مهمو اړتياوو څخه شمېرل کيږي. حتی د نړۍ په ډېرو پرمختللو هېوادونو کې، ډيرې کورنۍ مناسب شخصي کورونه نه لري او مجبور دي چې په هره مياشت کې د پام وړپيسې د کورونو دکرايې او اجارې په نوم ورکړي. زموږ هېواد په بېلابېلو دلايلو د هغو هېوادونو له ډلې څخه دی چې د مناسبو کورونو کمښت د هغوی له جدي ستونزو څخه شمېرل کيږي. په ښاروکې د کورونو دکمښت ځينی مهم دليلونه عبارت دي له:

## ۱- کډوالي یا مهاجرت

د جهاد او د جنګ د کلونو په اوږدوکې ډېر زيات خلک له کلیو او ښارونو څخه لرې او نژدې هېوادوته کډوال شول. له ۱۳۸۱ کال څخه وروسته نسبتاً د امن فضا زموږ په هېواد کې رامنځ ته شوه. زموږ یوزیات شمېر مهاجر هېوادوال وطن ته راستانه شول او په کلیو او ښارونوکې یې استوګنه غوره کړه، خو له هغو څخه زیات شمېریې د هېواد پایتخت او یا په نورو لویو ښارونوکې استوګن شول. په ځانګړې ډول دکابل په ښار کې د هغه له ظرفیت څخه څو برابره لوړ خلک ژوند کوي.

## ۲-د استوګنځي د ستونزو د حل لاره

په لومړی سرکې دولت کولای شي. د موجوده ماسترپلان په تطبیقولو او د ښارجوړونې د هغو نقشواو پلانونو له مخې چې په لاس کې یې لري اقدام وکړي. ځمکې مستحقو خلکو ته وویشي، ترڅو خلک مجبور نه شي چې بې نقشې او په خپل سر کورونه جوړکړي. دریم داچې عمومي امکانات خلکوته برابر کړي د مثال په توګه: کله چې ځمکه د جوړولو لپاره خلکو ته ورکړل شوه او کورونه یې جوړکړل، نو دولت باید د هغو سرکونه او کوڅې په پاخه ډول جوړ کړي. د صحي اوبو نلونه کورونوته وغځوي. د نلدوانی سیستم یې فعال او د فضله موادو د دفعې سیستم یې جوړشي.

څرنګه چې په تېرو لسیزو کې په هېواد کې جګړې دوام درلود او ډېرې و دانی یې ویجاړې کړې، د خلکو کورونه اوښارونه ویجاړ شول او خلک بې کوره شول. په دې ورستیو کلونوکې د دولت د پاملرنې، هڅو، پلانونو او طرحو درلودلو سره سره بیاهم د هغو ستونزو له امله چې موجودې وې تراوسه دا خورا مهم ټولنیز ستونزه نه دی حل شوی.

په هر صورت د استوګنځي ستونزه د خلکو یوه جدي ستونزه ده. دا هیله موجوده ده چې د هغو پلانونو او طریقو په تطبیق سره چې دولت یې په لاس کې لري، د خلکو په مرسته دا ستونزه حل شي.

## ۳-د تعميراتي موادو قيمتي

تعميراتي مواد له ګاونډيو هېوادونو څخه زموږ هېواد ته راليږدول کېږي، څرنګه چې په وروستيو کلونوکې زموږ داخلي توليداتو ته په زياته پيمانه زيان رسيدلی دی او تر اوسه لاژمې بياجوړونې نه دي شوې، تعميراتي وارداتي مواد د نا امنی، د مواصلاتې لارو د خرابوالي په نسبت ډېر ګران دي. په داسې حال کې چې زموږ خلک د اقتصادي ستونزو له امله د دې موادو د لوړې بيې له امله د اخيستلو توان نه لري. سربيره پردي په ښارونو اوکليوالي سيمو کې هم زيات خلک کورونه نه لري. هغه څوک چې ځمکه نه لري په طبيعي ډول له کور څخه هم بې برخې دي. کليوالي کورونه هم له صحي امکاناتو څخه برخمن نه دي او يوازې د ګرمۍ اوسړو مخنيوی کوي، نو ځکه د کور مشکل يوازې په ښارکې، نه بلکې په کليوالي سيمو کې هم دا ستونزه موجوده ده.

## اوس بايد څه وکړو؟

د دې مشکل دحل اوټولو هېواد والو ته د استوګنځي د تأمين په موخه، هم دولت او هم خلک بايد هلې ځلې وکړي. هغه کارونه چې دولت يې بايد سرته و رسوي عبارت دي له:

۱- **د هيواد ټولوښاروته د ماسترپلان جوړول**: دولت دې د ښارونو نقشې جوړې کړي ترڅو خلک وکړای شي چې په مناسب قيمت ځمکه واخلي او د کورونو جوړولو ته بلې ووهي.

۲- **د عمومي خدمتونو وړاندې کول**: دولت بايد د ټولو ښارونو په ځانګړي ډول د استوګنې د کورونو لپاره عمومي خدمتونه، لکه: اوبه، دفضله موادو د دفعې سيستم،برېښنا، تيليفون، سړک او پخې کوڅې جوړې کړي.

۳- **د استوګنې د بلاکونو جوړول**: يو ډېرمهم کارچې د دولت په مخکې پروت دی هغه دادی چې دولت ارزانه کورونه، خو په ټولو وسايلو سمبال کورونه جوړکړي او خلکو ته يې ورکړي. د ارزانه کورونو د جوړولو ډېره ښه لاره د استوګنې د بلاکونو جوړول دي. بلاکونه که په ښه طرحه او نقشه جوړشي. ډېروخلکو ته به په لږه فضا کې هوسا ژوند وربه برخه شي.



## د لوست تکرار

- ........................................................................
- ........................................................................
- ........................................................................
- ........................................................................
- ........................................................................



## پوښتنې

۱- زموږ په هېواد کې دکورونو دکمښت مهم لاملونه وښایاست؟

۲- ولې زموږ هېواد والو مهاجرت وکړ؟

۳- د دې لپاره چې خلک په خپل سر کورونه جوړ نه کړي، دولت باید کوم کارونه سرته ورسوي؟

٤- دولت او د کور جوړونې کمپنۍ د هېوادوالو د کورونو د کمښت په خاطر کوم کارونه باید سرته ورسوي چې زموږ خلک د کورونو(اپارتما نونو) خاوندان شي؟

۵- د کورونو د کمښت په هکله ستاسې وړاندیز څه دی، ویې لیکئ.



## کورنۍ دنده

د مور او پلار په مشوره او مرستې سره د استوګنځي په اړه ټولنیزې ستونزې په څو کرښو کې ولیکئ.

# زمونږ ټولنيزې ستونزې: روغتيا

## خبرې پرې وکړئ

روغتيا او سلامتي د لوی خدای (جَلَّ جَلاَلُه) لوی نعمت دی. لاندې پوښتنې په غور ولولئ او د هغو په اړه خبرې وکړئ.

۱- ولې روغتيا او سلامتي موږته ارزښت لري؟

۲- که روغتيا موله لاسه ورکړه له کومو ستونزو سره به مخ شو؟

۳- بايدڅه وکړو چې جوړ پاتې شو او ناروغ نه شو؟



ناروغي د بشر د ډېرو لويو دښمنانو څخه ده. او تاسې د عمر په اوږدوکې په عادي او سختو ناروغيو اخته شوي ياست او په پای کې زياتره د ناروغيو له امله خپل ژوند له لاسه ورکوو. سربېره پر دې کله هم ساري ناروغۍ په انسانانو حمله کوي او ډېرزيات شمېر خلك له منځه وړي. په پخوا زمانوکې انسانان په ډېرو ناوړو او خطر ناکو ساري ناروغيو باندې اخته کېدل او زيات شمېر خلك يې له منځه وړل اوکله هم د وبا او طاعون په واسطه ډېر خلك له منځه تللي دي.

هغه زيانونه چې انسان ته له ناروغيو څخه پيداکيږي عبارت دي له:

۱- درد او ربړ،

۲- د انسان دګټور فعاليت مخنيوی،

۳- هغه پيسې چې انسان يې د تداوی لپاره لګوي.

٤- د انسان مړينه.

۵- د نفوسو کمښت: څرنګه چې مخکې ورته اشاره وشوه، په هغه صورت کې چې ناروغي

ساري وي او انسان ونه شي کړای چې له هغه نه مخنیوی وکړي، ناروغي کولای شي د یوې سیمې په انساني نفوس کې کمښت راولي او یا یې بیخي له منځه یوسي.

سره له دې چې ناروغي په بشپړ ډول له منځه نه ځي، خو په ننني نړۍ کې ډېرې ناروغۍ د مخنیوی او درملنې وړدي، څرنګه چې رسول ﷺ فرمایلي دي: (خدای جَلَّ جَلاَلُه ناروغي نه ده پیدا کړې، خو هغه ته یې درمل هم پیدا کړي.) نو له درملو نه استفاده وکړئ. هغه ناروغۍ چې هره ورځ یې په زرګونو وګړي په لنډه موده کې له منځه وړل په آسانۍ سره د درملنې وړده، نو ځکه نن ورځ موږ ته د مسئله مهمه ده چې لومړی باید د خپل ژوند شرایط داسې جوړ کړو چې په ناروغیو اخته نه شو. دویم دا چې کله ناروغه کېږو، باید وکولای شو خپل ځان تداوي کړو چې د علاج وړ ناروغیو له امله له منځه لاړ نه شو.

## خوار ځواکي(سؤتغذي)

د انسان د روغتیا لومړنی شرط دادی چې ښه او پاک خوراک او کامله غذا ولري. په هغه صورت کې چې انسان په بشپړه توګه تغذیه نه شي، بدن یې په طبیعي ډول وده نه کوي او په پایله کې د نا روغیو په وړاندې خپل مقاومت له لا سه ورکوي اوبدن یې په خوار ځواکۍ اخته کېږي.

## له غیر صحي خوړو څخه استفا ده کول

د انسان خواړه باید صحي وي. که انسان له غیر صحي خوړو څخه ګټه واخلي له بېلابېلو ناروغیو سره مخامخ کیږي. زموږ په هېواد کې د ساتلو د وسایلو د کموالي له امله خواړه مخکې تردې چې خلکو ته ورسېږي، فاسد او خرابیږي. خراب او فاسد خوراکي شیان د خلکو د راز، راز ناروغیو سبب ګرځي. سربېره پردې دا خواړه د روغتیا وزارت لخوا په کمه اندازه ترڅارنې لاندې نیول کیږي. رستورانونه او هوټلونه روغتیایي اصولو ته سمه پاملرنه نه کوي.

## چاپېریال او ککړه هوا

پاک چاپېریال او پاکه هوا د ژوندانه یوبل مهم شرط دی. په ښارونو کې د ډیر شمېر هغو نقلیه وسایطو فعالیت چې دود تولیدوي. له بې کیفیته تېلو څخه استفاده کول او په لسگونونور عوامل د هوا د ککړیدو لامل گرځي چې د لویانو ،ځوانانو او د ماشومانو په روغتیا او سلامتیا نا وړه اغیزه کوي او هېواد وال په ډول، ډول ناروغیو اخته کوي. څرنگه چې ټولنه د ښارونو په پرمختیا اوکورنۍ د ماشومانو په وده کې رول لري، همدارنگه د ژوند چاپېریال هم د ماشومانو په وده کې رول لري.

په افغانستان کې د مړینې جگه کچه تر پنځه کلنۍ پورې په ماشومانو کې لیدل شوې ده. زیاتره دا ماشومان د ساري ناروغیو او همدارنگه د سا تنگۍ د ناروغیو له امله او د خوار ځواکۍ، ملاریا او شري له امله له منځه ځي. نس ناستی د هغو ککړو اوبو له استعمال او ښېنلو څخه منځ ته راځي چې د ژوند په چاپېریال کې وجود لري او تنفسي ناروغي د هوا له ککړ تیا څخه منځ ته راځي چې د ماشومانو د مړینې لامل گرځي.

د ملاریا د خپریدو لامل ولاړې او ورستې اوبه دي چې د ملاریا غوماشې په واسطه انسان ته انتقالیږي. لنډه داچې د ټولو ساري ناروغیو منبع د ژوندککړ چاپېریال دی.

نو لازمه ده چې دولت او خلک د ژوند د پاک او روغ چاپېریال په ساتنه کې پاملرنه وکړي او د چاپېریال د روغتیا او د هوا د ککړتیا مسألې ته د خپلو چارو د سرته رسولو په لومړي سرکې ځای ورکړي.

## د روغتیایي او درملنې د امکاناتو کموالی

له هغو ستونزو سره سره چې د روغتیا په برخه کې یې لرو، معیاري کلینیکونه او روغتونونه هم په افغانستان کې ډیر لږ لرو.که ټول امکانات موجود وي، نو بیا متخصص ډاکتران کم لرو. له همدې کبله ده چې په کال کې په زرگونو خلک د درملنې لپاره بهرنیو هېوادونو ته ځي.

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اساسي قانون د ۵۲ مادې مطابق ((**دولت مکلف دی چې د قانون له احکامو سره سم ټولو اتباعو ته د ناروغیو د درملنې وسایل او روغتیایي آسانتیاوې په وړیا توگه برابرې کړي**)).



## د لوست تکرار

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................



## پوښتنې

۱- د ځینو ساري ناروغیو نوم واخلئ.

۲- له نا روغیو څخه کوم زیانونه انسان ته رسېږي؟

۳- څنګه کولای شو چې د ناروغیو په وړاندې ځان وقایه کړو؟

۴- خوار ځواکي څه شی ده؟

۵- له غیر صحي خوړو څخه ګټه اخیستل د انسان په بدن باندې څه اغیزه کوي؟



## کورنۍ دنده

ککړه هوا د انسان په بدن باندې څه اغېزه لري؟په دې اړه څو کرښې ولیکئ.

# زموږ ټولنیزې ستونزې دنشه يي توکو قا چا ق

## خبرې اترې پرې وکړئ

ځینې وګړي خپله او د نورو روغتیا د نشه يي توکو په تولید او قاچاق کولو له خطر سره مخامخ کوي.

### ستاسې په فکر

۱- د نشه يي توکو استعمال زموږ لپاره کوم زیانونه لري؟



۲- آیا نشه يي توکي زموږ د هېواد لپاره یوه لویه ستونزه ده؟ څه ډول؟

۳- د نشه يي توکو تولید، استعمال او قاچاق څرنګه فردي او ټولنیزې پایلې لري؟

۴- څه ډول کولای شو چې دا ستونزه له منځه یوسو؟



نن ورځ نشه يي توکي زموږ د هېواد، سیمې او نړۍ له مهمو ستونزو څخه شمېرل کېږي. د جګړې په بحراني کلونو کې بېلابېلو ډلو په افغانستان کې د خپل فعالیت زمینه مساعده ولیده او په لرو پرتو سیمو کې يې د دولت د نه کنټرول په وجه ، په خپل ناوړه فعالیت لاس پورې کړ. ځینو ډلو او د مخدره موادو د قاچاق برانو په طرفدارۍ خلک د اپینو(تریاک) کرلو ته وهڅول چې له دې امله زموږ ګران هېواد نن ورځ په نړۍ کې د مخدره موادو په ستر تولیدونکي هېواد بدل شوی دی. په افغانستان کې د مخدره موادو تولید نړیوال مافیا په مرسته ترسره کېږي او دوی هغه حاصلات چې په افغانستان کې ترلاسه کوي اروپايي او امریکايي هېوادونو ته يې قاچاق کوي.

مخدره مواد هغو موادو ته وېل کېږي چې استعمال يې د انسان شعور له اختلال سره مخ کوي اپين يا ترياک ډېر خطرناک مخدره مواد دي چې له دې موادو څخه لا خطرناک مواد لکه هروئين جوړېږي، د مخدره موادو کښت او قاچاق زموږ دولت او ملت ته ډېرې ستونزې رامنځ ته کړې دي چې مهمې برخې يې دادي.

## د ګټورو محصولاتو له کرلو څخه مخنيوی

د اپينو د کرنې لومړنی زيان چې د هغې په کرلو بزګران له ګټورو محصولاتو څخه چې ټولنه ورته اړتيا لري، وروسته پاتې کېږي.

ډېرګټور محصولات و جود لري چې بزګران کولای شي د هغو په کرلو ښه ګټه ترلاسه کړي او هم خپلو خلکو او ټولنې ته خدمت وکړي. خو د غنمو، اوربشو، لوبيا، پنبې او داسې نورو پرځای خپلې شتمنې ځمکې او د کارکولو ځواک د داسې محصولاتو کښت ته ځانګړې کوي چې د نورو ژوند له خطر سره مخامخ کوي.

## رو ږدي کېدل يا اعتياد

کله چې اپين او نورمخدره توکي په هېواد کې وکرل شي او په ارزانه بيه د خلکو لاس ته ورشي، نوي ځوانان د هغو استعمالولو ته مخه کوي او معتاد کېږي.

په دې ډول موادو اعتياد انسان ناروغه کړي او هغه د ګټورکار او فعاليت څخه پاتې او سرغړو نو اوجرم کولو ته يې اړ باسي، کله چې په يوه هېواد کې د مخدره توکو د روږدي کسانو شمېر زيات شي، نو د کورنيو، خلکو او دولت د ستونزو سبب ګرځي.

## د اداري فساد زياتوالی

څرنگه چې د مخدره توکو قاچاق منع دی، قاچاقچيان هڅه کوي ځينې دولتي مسئوولين (په ځانگړې ډول د پوليسو په ادارو او محکموکې) په بيه واخلي او خپلو فعاليتونو ته لاره هواره او آسانه کړي. دوی کله کله ځينې لوړ پوړي دولتي چارواکي د پيسو په بدل کې له ځان سره ملگري کوي، ترڅو د دوی له نفوذ څخه گټه واخلي، نو له همدې امله اداري فساد پراخيږي او د هغه د کموالی لپاره هڅې له ناکامۍ سره مخ کيږي، ځکه چې د دولت په د ننه کې ځينې کړۍ د اداري فساد له پراخېدو څخه ملاترکوي.

## نا امني او تاو تريخوالی

کله چې دولت کوښښ کوي چې د مخدره موادو د قاچاق مخه ونيسي. قاچاق کوونکي له خپلو ټولو امکاناتو څخه په گټه اخيستلوسره هڅه کوي چې د دولت د تدابيرو په وړاندې و دريږي او خپل فعاليت ته دوام ورکړي. د دوی يوه لاره د دولت د هڅو په وړاندې اداري فساد ته شدت ورکول دي چې په دې هکله وړاندې توضيح ورکړل شوه. بله لاره د نا امنۍ رامنځ ته کول او له تاوتريخوالي څخه گټه اخيستل دي.

څرنگه چې قاچاق کوونکي له دې لارې زياتې پيسې لاسته راوړي، نو په ډيرو عصري وسلو سمبال دي.د شرايطو د برابرېدو په صورت کې له هغو څخه د خلکو او دولت په مقابل کې ورڅخه کار اخلي، نو ځکه نشه يي مواد له نا امنۍ او ترهگرۍ سره نژدې اړيکې لري.

## د لوست تکرار

- ..........................................................................................................
- ..........................................................................................................
- ..........................................................................................................
- ..........................................................................................................

## پوښتنې

۱- نشه يي توکي څه شی دي؟

۲- د نشه يي توکو زيانونه بيان کړئ.

۳- د ترياکو په کرلو سره زموږ بزګران له کومو کرنيزو محصولاتو څخه بې برخې کېږي؟

۴- د نا امنۍ او تاوتريخوالي په اړه يو څو کرښې وليکئ.

۵- اعتياد او روږدي کېدل څه شی دی، په دې هکله يو څو کرښې وليکئ.

## کورنۍ دنده

د نشه يي توکو د له منځه وړلو په اړه خپل وړانديز په څوکرښو کې وليکئ.

# زموږ ټولنيزې ستونزې، نا امني او تر هګري



## خبرې اترې پرې وکړئ

لاندې پوښتنې په غور ولولئ او ځواب ووايئ.

۱- هغه ستونزې چې زموږ خلک يې زغمي، نومونه يې واخلئ؟

۲- کوم لاملونه د نا امنۍ سبب ګرځي؟

۳- ددې لپاره چې با امنه ټولنه ولرو، کوم کارونه بايد سرته ورسو؟

موږ په ټولنه کې هرډول اقتصادي، سياسي، فرهنګي او ټولنيزو فعاليتونو ته اړتيا لرو. دا فعاليتونه هغه وخت امکان لري چې په هېواد کې پوره امنيت وجود ولري، که د کار لپاره پوره امنيت شتون ونه لري، وګړي، سازمانونه او نور له عادي کار او فعاليت څخه پاتې کيږي.

له هرڅه مخکې بايد د امنيت مفهوم شرحه کړو. امنيت په ټولنه کې هغې وضعې ته وايي چې خلک د ډاډ اوآرامۍ احساس وکړي او د هېڅا او هېڅ سازمان له خوا ورته ګواښ مو جود نه وي. د بيلګې په توګه: که څوک يو کار کوي او د هغه کار له هېڅ ګواښ سره مخامخ نه وي، نو ويلای شو چې هغه د کار کولو امنيت لري. او يا که خلک پرته له ويرې او ګواښ څخه په خپل ژوند او چارو بوخت وي او د خپل ژوند او مال په اړه له چا څخه ويره ونه لري، نو هغوی له ځاني او مالي امنيت

څخه برخمن د ي. له دې معلومېږي چې امنیت ډولونه لري چې ډیرمهم یې عبارت دي له: رواني ، اقتصادي، سیاسي، ټولنیزاو ځاني امنیت څخه. په عمومي ډول ویلای شو چې امنیت په دوو برخو رواني او فزیکي امنیت وېشل شوی دی.

رواني امنیت هغه وخت حاصلیږي چې په هېواد کې بشپړ امنیت شتون ولري او فزیکي امنیت د امنیت ډېرکم حد دی، که فزیکي امنیت شتون ونه لري د خلکو ژوند ته خطر پېښیږي. په دې صورت کې به رواني امینت هم شتون ونه لري.

## د نا امنۍ لاملونه

نا امني هغه وخت را منځ ته کیږي چې ټولنیز قواعد او رسمي قوانین د ځینو دلایلو له امله خپل اخلاقي او پرګنیز ملاتړ له لاسه ورکړي، چې یو شمېر له دې فرصت څخه ناوړه ګټه پورته کوي او د خلکو ځان اومال له منځه وړل خپله موخه ګرځوي. نا امني ډیر لاملونه لري چې مهم لاملونه یې په لاندې ډول دي: جنګ (داخلي یا بهرنۍ جګړې) ترهګري، د مخدره موادو قاچاق او وسله والې غلاوې، سیاسي ایدیولوژیکي اختلافات او فرکسیون بازي. اوس زموږ په هېواد کې د نا امنیو مهم لامل ویره اچونه ده چې په دې لوست کې به په لنډه توګه پرې رڼا واچو.

## ترهګري (ویره اچونه)

هرسازمان ورکړ شوی فعالیت چې د خلکو د ډار، وېرې او نا آرامۍ سبب شي او سیاسي موخې ولري ترهګري یا (ویره اچونه) بلل کیږي. د دې تعریف له مخې هغه نظامي فعالیتونه او ډله ییز تبلیغات چې غواړي له دې لارې په دولت باندې فشار راوړي او خپلو سیاسي موخو ته ورسېږي، ترهګري بلل کیږي. زموږ خلك له ډېرو کلونو را هیسې د سیمه ییز او نړیوال ترهګرۍ قرباني شوي دي. ترهګري زموږ د هېواد د نا امنۍ لپاره ډېرې بدې پایلې لري چې ځینې یې دادي:

## د خلکو وژنې

ترهګر خپلو موخو ته د رسېدو لپاره حاضردی چې بېګناه خلك ووژني.

## د هېواد وېجاړول او خرابول

نا امني د خلکو او د بېلابېلو دولتي او خصوصي مؤسسو د تړلو اوسقوط لامل ګرځي. ترهګري عملیات لکه څنګه چې د خلکو ځان ته ګواښ دی، همدارنګه دولتي او خصوصي مالونو او ودانیو ته هم تاوان رسوي. او هره ورځ د دې پرځای چې هېواد مو آباد شي، ورانیږي.

## د وخت ضایع کېدل

وخت د انسان لپاره ډېرمهم دی او باید هغه له لاسه ور نه کړو. نن ورځ هېوادونه په کم وخت کې په ډېرو لویو پرمختګونو لاس بری پیداکړي. په داسې حال کې چې زموږ خلك د نا امنیو په دلیل او د ترهګرو فعالیتونو له امله له موجوده ثروت سر بېره خپل کلونه کلونه وخت بې له دې چې کوم پرمختګ وکړو له لاسه ورکوو. اوس د دولت او ملت دنده ده چې په ټول وس او توان سره هڅه وکړي چې د کار او فعالیت لپاره امنیت ټینګ کړي.



## د لوست تکرار

- ...........................................................................................
- ...........................................................................................
- ...........................................................................................
- ...........................................................................................
- ...........................................................................................



## پوښتنې

۱- د کار امنیت څه معنا لري؟

۲- ترهګري څه شی ده؟

۳- په هېواد کې د نا امنۍ لا ملونه کوم دي؟

۴- ترهګري فعالیتونه هېواد ته څه پایلې لري؟



## کورنۍ دنده

هغه ستونزې چې زموږ هېوادوال یې د نا امنۍ له پلوه زغمي، کومې دي؟

په دې اړه څو کرښې ولیکئ او بیایې په ټولګي کې ولولئ.

# زموږ ټولنیزې ستونزې: نا چاودلي توکي



## خبرې اترې پرې وکړئ

زموږ په ګران هېواد کې کلونه کلونه جګړه روانه وه. هرې ډلې د خپلو قوتونو د ساتلو لپاره ماینونه ښخ کړي وو.

اوس هم د څو کلونو راهیسې زموږ په ځینو سیمو کې یو زیات شمېر ناچاودلي ماینونه او نورتوکي په ځای پاتې دي چې د خلکوژوند تهدیدوي. ستاسي له نظره:

۱- آیا تاسې تراوسه پورې ناچاودي ماینونه او یا نور توکي لیدلي دي؟

۲- که چېرې له ماین سره مخامخ شئ څه کار کوئ؟

۳- د ماینونود مخنیوي لپاره کوم کارونه باید وکړو؟

هغه هېوادونه چې د جګړو له مرحلې څخه تېرشي، ترجګړې وروسته ډېر کلونه بیاهم د جګړې ستونزې ګالي. له ډېرو مهمو ستونزو څخه یوه یې د ماینونو او نا چاودو توکو پاتې شونې دي چې په کال کې د یو زیات شمېر هېواد والو د مړینې سبب ګرځي. په دې څو کلونو کې د ماینونو او ناچاودو توکو د ټولولو لپاره زیات فعالیتونه تر سره شویدي. په خواشینۍ سره باید ووایو چې زموږ یو زیات شمېر هېوادوالو له همدې امله خپل ژوند له لاسه ورکړی دی. له دې هڅو سره سره بیاهم زیات شمېر ناچاودي توکي لا تر اوسه پورې تر خاورو لاندې دي چې زموږ د هېوادوالو ژوند له خطر سره مخامخ کوي.

## اوس باید څه وکړو چې د ماینونو له خطر څخه وژغورل شو؟

په دې برخه کې باید ډېرکارونه سرته ورسوو چې مهم یې دا دي؟

• یو اساسي کار دا دی چې د دولت او د ماین پاکۍ دفتر باید هلې ځلې وکړي چې ډېر ژر ماینونه او

نور ناچاودي توکي له منځه یوسي او د هغې له احتمالي خطر څخه خلك وژغوري.

• بل ډیرمهم کار دادی چې د ماین پاکی مسؤولین باید خلك د ماینونو په ځانګړتیاوو و پوهوي او دا هم ور زده کړي چې له دې توکوسره څه ډول چلندوکړي. هغه خلك چې د ماینونوپه سیموکې ژوندکوي، باید ماینونه وپیژني، د هغوی په خطرونوو پوهېږي او له هغو سره د چلند زده کړه وکړي.

چې خپل ځان د ماینونو له خطر څخه څنګه وساتي ؟

د ماین پاکی مؤسسې چې په ملګروملتونو پورې تړلې مؤسسې دي، په دې برخه کې یې زیات کارونه او فعالیتونه سرته رسولي دي او ځینې لارښوونې یې د تبلیغاتوله لارې ترسره کړي دي چې ټولو خلکو د ارزښت وړدي.

**بحث وکړئ**

## ناچاودي توکي څه شی دي؟

پلاستیکي، د لرګیو او اوسپنیزه نا پېژندل شویو توکو ته لاس مه وروړئ، کیدای شي چې ناچاودي توکي او یا یو ډول ماین وي. هغه چاودېدونکي توکي چې چاودېدلي نه وي، د نا چاودو توکو په نامه یادیږي. ناچاودي توکي عبارت دي له: راکټ، نارنجك، بمونه او داسې نور. ناچاودو توکي له فلزاتو، لرګیو او پلاستیك څخه جوړ شوي دي او د اقلیم له بدلون سره خپل رنګ ته بدلون ورکوي او کوم مهمات چې له فلز څخه جوړ شوې دي زنګ یې وهي او پېژندنه یې ډېره مشکله وي. په دې توګه په هغو سیمو کې چې دا توکي نه پېژنو، باید د سیمې مشرانو او یا د ماین پاکی دفتر ته خبر ورکړو، ترڅو هغه له منځه یوسي. زیاتره نا چاودي توکي د ځمکې پرمخ په بېلابېلو بڼو پراته وي او د هغوی له خطرونو څخه مخنیوی ډېرآسانه دی. په داسې حال کې چې ماینو نه زیاتره د ځمکې لاندې ښخ وي او له هغو د خطرونو څخه مخنیوی ستونزمن کار دی، خو نا چاودي مهمات کولای شي د ماینونو په پرتله د انسانانو او حیواناتو د ټپي کېدو او د ډېرو تلفاتو لامل شي. (د حب الو طن من الایمان) د مقولې په بنسټ، وطن د هېواد په هر وګړي حق لري.هېواد د مور په شان دی، څرنګه چې په اولاد خپل مور او پلار ګران وي، نو د ټولنې په خلکو هم باید خپل هېوادګران وي. په داسې حال کې چې د ناچاودو توکو او ماینونو خطر هېواد ته یو ګواښ دی، نو د هېواد ټولو خلکو ته پکارده چې ماینو نه ښخ نه کړي او همدارنګه کله چې نا چاودي توکي ووینې هغو ته لاس ورنه وړي، بلکې د ماین پاکی ادارې ته خبر ورکړي او خپله ایماني او وطني دنده سرته ورسوي.



### د لوست تکرار

- ..............................................................................................................
- ..............................................................................................................



### پوښتنې

۱- نا چاودي توکي څه شي ته وايي؟
۲- ولې ښخ شوي ماينونه اونا چاودلي مهمات دځمکې پرمخ پاتې دي؟
۳- ماينونه او نا چاودي مهمات څه خطر لري؟
۴- کله چې له ماينونو سره مخامخ شئ څه کار به سرته ورسوئ؟
۵- څنګه کولای شو چې د نا چاودو مهماتو او ماينونوله شر څخه په امن کې پاتې شو؟

### کورنۍ دنده

دا چې څنګه کولای شو د ماينونو او نا چاودو توکو له خطر څخه په امان کې پاتې شو، په دې اړه څوکرښې وليکئ.

## د پنځم څپرکي لنډيز

• **انسانانو ډېره موده د ځمکې پر مخ ژوند وکړ، خو په لوست او ليک نه پوهېدل. په هغه وخت کې د تېر نسل تجربې به په شفاهي او عملي توګه له يوه نسل څخه بل نسل ته انتقاليدلې.**

• **نيستي(غريبي)، د ژوند د لومړنيو اړتياوو دنه لرلو په معنا ده چې انسان هغه ته اړتيا لري. نيستي داسې غميزه ده چې د تاريخ په اوږدوکې يې وګړو ته ربړونه ور په برخه کړې دي.**

• **هغه ټولنه هو ساينې او شتمنۍ ته لاس رسی پيدا کوي چې وګړي يې د خپل توان او وړتيا په کچه د ټولنې له امکاناتو او منابعو څخه ګټه لاس ته راوړي.**

• **له ډېرو پرمختګونو سره سره چې بشر لاس ته راوړي، خو د استوګن ځای ستونزه لا هم د بشر له ډېرو مهمو ستونزو څخه شمېرل کېږي.**

• **ناروغي تل د وګړو د ښمنه ګڼل کېږي. د ژوند په اوږدو کې موږ هريو په ساده اوسختو ناروغيو باندې اخته کېږو او په پای کې د همدې ناروغۍ له امله ژوند له لاسه ورکوو.**

• **د انسان د سلامتيا لومړنی شرط ښه او مناسب خواړه دي.**

**موږ په ټولنه کې په مختلفو اقتصادي، سياسي، فرهنګي او ټولنيزو فعاليتونو بوخت يو. دا فعاليتونه هغه وخت ممکن دي چې بشپړ امنيت وي.**